# اسلام د دوه لاري پر سر

**ليکوال:**

**علامه محمد اسد**

**ژباړن:**

**عبدالمالک (همت)**

د مسلمانانو په وړاندي اوسمهالي ننګوني (چيلنج) او
د قرآن او سنتو په رڼا کي د ژغورني لار

د يهودي الاصله اتريشي مسلمان سوي
علامه محمد اسد د نامتو کتاب
ISLAM AT THE CROSS ROADS

د کتاب نوم: اسلام د دوه لاري پر سر
د کتاب اصلي نوم: ISLAM AT THE CROSS ROADS
اسم الكتاب بالعربية: الإسلام في مفترق الطريق
ليکوال: علامه محمد اسد
ژباړن: عبدالمالک (همت)
موضوع: اسلامي تاريخ
د چاپ شمير: لومړي (ديجيتال)
د چاپ تاريخ: سلواغه ۱۳۹۵ هـ ش - جمادي الأول ۱۴۳۸ هـ ق
سرچينه:

دا کتاب د عقيدې د کتابخانې سايت نه داونلود شوی دی.

**www.aqeedeh.com/pa**

برښنا ليک: **book@aqeedeh.com**

**د موحدينو ګروپ ويب پاڼو**

| | |
|---|---|
| www.mowahedin.com | www.aqeedeh.com |
| www.videofarsi.com | www.islamtxt.com |
| www.zekr.tv | www.shabnam.cc |
| www.mowahed.com | www.sadaislam.com |



contact@mowahedin.com

بسم الله الرحمن الرحيم

# سرليکونه

**سرليکونه ............................................................أ**

**د کتاب په هکله لنډ معلومات ...................................... ١**

**لږ هم د ليکوال په هکله........................................... ٦**

علامه محمد اسد پخپله ليکي: ................................... ٦

**د ليکوال څرګندوني ................................................ ١٥**

**مخکنی خبري....................................................... ١٨**

**د اسلام پرانستې لار (د اسلام صراط مستقيم) ...................٢٤**

د لوېديځ روح ........................................................ ٤١

د صليبي جګړو سيوری ............................................... ٦٢

د اسلام په اړه د لوېديزيانو چلند .................................. ٧٧

د مسلمانو زلميانو ښوونه............................................. ٨٠

د لوېديځ پيښې څله؟ ................................................. ٩٢

حديث او سنت........................................................ ٩٩

پايله ................................................................. ١١٥

**د دې کتاب د ځينو مشکلو لغاتو او اصطلاحاتو معناوي .............. ١٢٤**

**د ژباړن لنډه پېژندنه ............................................ ١٢٧**

## قرآنی مرغلري

﴿كُنتُمۡ خَيۡرَ أُمَّةٍ أُخۡرِجَتۡ لِلنَّاسِ تَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَتَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَتُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِۗ﴾ [آل‌عمران: ۱۱۰].

ژباړه: «تاسي په نړۍ کي هغه غوره ډله یاست چي د وګړو د لارښووني او اصلاح لپاره منځته راوړل سوې ده. تاسي د نیکۍ امرکوئ اوله بدیو منع او پر الله ایمان لرئ».

## د کتاب په هکله لنډ معلومات

د نامتو مفکر علامه محمد اسدرحمه الله دغه کتاب چې تاسي يې لولئ د لومړي ځل لپاره په ۱۹۳٤ع.کال په ډيلي کي د ( Islam at the cossroads) په نامه چاپ ته وسپارل سو. چې بيا په لاهور او ډېرو نورو ځايونو کي خپور سو او د «الاسلام على مفترق الطرق» په نامه د ډاکټر عمر فروخ لخواپه عربي وژباړل سو بيا د (اسلام دوراھے پر) په نامه د رحم علي الهاشمي لخوا په اردو ژبه وژباړل سو او په ۱۹٦۸ع.کال په ډيلي کي خپور سو، په ۲۰۰٤ع.کال دغه کتاب د ډاکټر محبوب سبحاني لخوا بيا په اردو ژبه وژباړل سو او د محسن فاراني تر تصحيح او تنقيح وروسته د دارالسلام د کتاب خپرولو د نامتو ادارې لخوا د (ملت اسلاميه دوراھے پر) په نامه چاپ سو.

دغه راز دغه کتاب په ډېرو نورو ژبو هم ژباړل سوی دی او څو ځلي په بېلو بېلو هيوادونو کي خپور سوی دی. ډېرو نامتو ليکوالو په بېلو بېلو ژبو پر دغه کتاب مقالې ليکلي او ستايلی او تاييد کړی يې دی او ډېرو هم په خپلو ليکنو کي د ماخذ په توګه ګټه ځني اخيستې ده. چې په دې توګه دغه کتاب او د هغه ليکوال د نړۍ په ګوټ ګوټ کي، په تېره په اسلامي نړۍ کي ډېر مشهور سوی او د يوه غوره او منلي کتاب په توګه يې زيات لوستونکي او خوښوونکي موندلي دي.

په دې کتاب کي علامه محمد اسد مسلمانان مخاطبوي او وايي: «تاسي د لوېديځ د ټولنيزو ارزښتونو په پټو سترګو پېښې او تقليد

پرېږدئ او د هغه پر ځای د خپل اسلامي میراث د ساتلو کوښښ وکړئ، کوم چې یو مهال یې څو اړخیز او تاریخي پرتمین اسلامي تهذیب رامنځته کړی وو».

هغه د «د اسلام صراط مستقیم» تر سرلیک لاندي لیکي: «اسلام موږ د دنیا پرېښوولو (ترک دنیا) ته نه اړباسي او نه مو د روحاني تزکیې په موخه د کومي پټي دروازې د پرانیستلو لپاره ریاضتونو ته مجبوروي. د اسلام فلسفه کومه راهبانه فلسفه نه ده. بلکي اسلام د فطرت د قوانینو سره سم د ژوند کولو کړنلار ښیي چې لوی څښتن یې حکم خپل مخلوق ته کړی دی».

هغه د اسلام د اخلاقي نخشې تر وړاندي کولو وروسته څرګندوي چې د لوېدیز فرهنګ روحاني جرړي په بت پال رومي فرهنګ پوري نښتي دي. ځکه نو باید مسلمانان د لوېدیز فرهنګ له خپلولو څخه ډډه وکړي. پدې چې د اسلامي فرهنګ او لوېدیز فرهنګ تر منځ کوم روحاني مطابقت نسته. په دې ترځ کي هغه د تاریخي تجربو، په تېره د صلیبي جګړو جاج اخیستی او د اسلام سره یې د لوېدیځ دښمني هم څرګنده کړې ده.

علامه محمد اسد ﷫ وایي: «د لوېدیځو آرونو سره سم د مسلمانو ځوانانو ښوونه، کومه چې د لوېدیځو فرهنګي تجربو او ارزښتونو پر بنسټ ولاړه ده، دوی ته زښته زیاته هلاکوونکې ده. د دغي ښووني په پایله کي د دوی دیني عقاید کرار کرار کمزوري کیږي.... د زوال په اوسني پړاو کي د ډېرو مسلمانو کورنیو مذهبي چاپېریال او عقلي معیار ډېر ټیټ سوی دی. د دې پایله دا کېدای سي

چي نوي ځوانان مذهب شاته وغورځوي يا په خپل ژوندانه کي د مذهب مخالف چلند غوره کړي».

علامهﷺ خبرداری ورکوي: «مسلمانانو ته نه ښايي چي له لوېديزو (غربي) عينکو څخه د هر څه د ليدلو او د لوېديځ (غرب) د فکر د غوره کولو هيله وکړي. که هغوی غواړي چي مسلمان پاته سي نو بايد د اسلام روحاني فرهنګ په لوېديز ماده پال فرهنک بدل نه کړي».

هغه وايي: «مسلمانان بايد له لوېديزيانو څخه يوازي د ساينسي علومو پر زده کولو بسنه وکړي، خو فلسفه يې بايد هيسته وغورځوي». دغه راز بايد د مسلمانانو په ښوونيزو ادارو کي «اروپايي فلسفې، ادب او تاريخ ته د لومړي توب حق ورنه کړل سي. ځکه چي له دې څخه منفي لورو ته د نوو ځوانانو پر اوښتلو سربېره، د هغو په اومو ذهنونو کي په فطري توګه د لوېديځ د فرهنګ روح ځای نيسي او پر لوېديزو ارزښتونو د ولاړ ټولنيز نظام د لېږدوني کار پيلوي، کوم چي د اسلام د روح خلاف باله سي».

وګورئ له کومو خطراتو څخه چي څه انديښني علامه محمد اسدﷺ څه له پاسه او يا کاله دمخه څرګندي کړي وې، هغه اوس په ډېره بېرووتکې او مجسمه بڼه زموږ په وړاندي راڅرګند سول. اوس په اسلامي نړۍ کي د لوېديزو زده کړو د پراختيا له امله زموږ نوی توکم د خپلي پېژندني له بحران سره مخامخ دی. لوېديز تهذيب په خپلو ټولو شيطاني وسايلو پر اسلام باندي بريدونه کوي او د اسلامي ټولني ستني يوه يوه کوي او بې ځواکه کوي يې.

علامه محمد اسدﷺ د «حديث او سنت» تر سر ليک لاندي وايي: «اسلام د ژوندانه د ټولو اړخونو لپاره داسي لارښوونې لري چې نه په هغو کې څه زياتيدلای سي او نه کمېدلای سي. قرآن کريم او رسول اللهﷺ چې موږ ته څه تعليم راکړی دی موږ بايد هغه په بشپړه توګه غوره کړو، که نه د هغه له ارزښتونو او ښېګڼو څخه به بې برخي پاته سو».

هغه د سنتو د اهميت په هکله وايي: «په ټولو چارو کي پر سنتو باندي کړنه، پر اسلام کړنه ده او د سنتو پرېښوول د اسلام له حقيقت څخه مخ اړول باله سي».

د کتاب په وروستي نتيجه اخيستونکي باب کي ليکي: «لکه چي ځيني مسلمانان فکر کوي، موږ ته د اسلام د اصلاح کولو څه اړتيا نسته، ځکه چي اسلام له هره پلوه مکمل او بشپړ دين دی». هغه موږ وربولي چي د اسلام په اړه د خجالت د احساس او معذرت غوښتونکې رويه خوشي کړو او په ټينګه وايي چي «موږ ته ښايي چي يو ځل بيا د اسلام هغه معيار رامنځته کړو چي پر محک يې دنيا ازموينه کړې ده».

رشتيا داده چي د اسلامي امت د بخولو او بدمرغيو او له دين څخه د مخ اړولو او په هغه د عمل نه کولو په دې پېر کي د علامه محمد اسدﷺ د غه کتاب د لاري بلېنده (ډېوه) باله سي. ځکه نو موږ وپتېيل چي دغه له ارزښته ډک او نامتو اثر د لوی څښتنﷻ د رضا او د اسلام د سپېڅلي دين د ننګي او بيا احيا په موخه او د خپلو افغانو ورونو د چوپړ لپاره په ګرانه ملي ژبه پښتو وژباړو. هيله ده

زموږ دا وړوکی خدمت پر دې او هغه دنیا زموږ د ګردو مسلمانانو د خیر او ژغورني لامل سي. والسلام.

## لږ هم د لیکوال په هکله

علامه محمد اسدؒ په تېره پېړۍ کې یو ستر نوی مسلمان سوی عالم وو. د هغه لومړنی نوم لیو پولډ وئیس Leopold Weiss)) وو. په ۱۹۰۰ع. کال د اتریش د لیوو Livow)) په یوه یهودۍ کورنۍ کې (دیهودو د فقهي ښوونکو ملایانو) په کاله کې وزېږېد. (اوس لیو په پولینډ کې شامل دی). نیکه یې یهودی ملا او پلار یې مدافع وکیل وو. په کوچنیوالي یې د دوی د کورني دود سره سم عبراني او آرامي ژبې زده کړې او د تلمود، بایبل او فارغوم مذهبي کتابونو تعلیم یې ترلاسه کړ. په ۱۹۱٤ع. کال چې لومړۍ نړۍ واله جګړه ونښته هغه د ښوونځي زده کوونکی وو. دغه مهال له ښوونځي څخه وتښتېد او په جعلي نامه پوځ ته شامل سو. خو د هغه د پلار د شکایت له امله یې د عمر د لږوال په سبب بېرته له پوځ څخه وایست. د جګړې تر پایته رسېدو وروسته یې د فلسفې او هنرونو په څانګه کې د ویانا په پوهنتون کې لوړې زده کړې وکړې او له دغه پوهنتون څخه یې د ماسټرۍ (ایم اې) سند تر لاسه کړ.

### علامه محمد اسد پخپله لیکي:

«د تحصیل په دوران کې مې د شعور سترګې کرار کرار خلاصېدلې او پوهېدلم چې ټوله اروپا په ستره روحي ناکراري اخته ده، مذهبي او روحاني ارزښتونه له منځه ځي او د پیسه پالنې او مادیاتو رپۍ په ډېره چټکتیا سره پورته کیږي. پر هر اروپایي خطرې

او بېري سيوري اچولي، په تېره ځوان توکم په تورو تيارو کي لالهانده ګرځي او هغو پوښتنو ته جواب نه مومي چي د دوی اذهان يې پرېشانه کړي دي. اروپا په يوه داسي بخوله اخته وه چي خلکو يې له ځان پالني، خود غرضۍ، پيسه پالني او لنډ مهالو خوندونو پرته بله موخه نه درلوده».

بالاخر هغه پوهنتون پرېښود او په ۱۹۲۰ع.کال له ويانا څخه پراګ ته ولاړ. هلته ډېر مهال د بې کارۍ او لوږي سره مخامخ سو او پر خپلو پښو درېدو لپاره ډېر وځغاست. پای په يوه خبري آژانس، «يونايټيډ ټيليګراف نيوز ايجنسي» کي د تليفوني او وروسته د خبريال په توګه وټاکل سو. د هغه يو ماما د بيت المقدس په يوه روغتون کي مامور وو. د ۱۹۲۲ع.کال په پسرلي کي د هغه په بلنه هلته ولاړ. د دغه کال په وروستيو کي هغه په منځني ختيځ کي د يوې نامتو جرمنۍ جريدې فرينکفرټر زايټونګ ( Frankfurer Zeitung) د ګرځنده خبريال په توګه وټاکل سو. هلته ده ته څرګنده سوه چي څنګه د اروپا ټول ځواکونه په يوه سلا مسلمانان د خپلو مظالمو هدف ګرځوي او له مذهبي، فرهنګي، ټولنيزو، اقتصادي او سياسي پلوه يې فلجوي او عزت او پرځان وېسا يې له منځه وړي. په تېره په فلسطين کي د عربو او يهودو په هکله د هغو پاليسي څونه غير انساني ده.

په ۱۹۲۳ع.کال هغه مصر ته ولاړ بيا د دغه کال په دوبي کي بېرته بيت المقدس ته وخوځېد، بيا له هغه ځايه دمشق ته رهي سو. هلته يې داسلامي عالمانو سره ليدني کتني وسوې، د هغه ځای مساجد او نور ديني مراکز يې هم وکتل او ډېر وخت يې په

کتابتونونو کي تېرېدی. دغه مهال بې عربي ژبه څه زده کړه او د قرآن کريم په لارښوونو د جرمني او فرانسوي ژباړو په مټ پوه سو، چي بالاخره د اسلام د حقايقو سره په ښه توګه بلد سو. د ۱۹۲۳ع. کال په مني کي له سوريې څخه اروپا ته ولاړ. دغه مهال د اروپا انځورونه بالکل پردي ورته وایسېدل او د هغه ځای وګړي ذليل او ناولي په نظر ورغله اوپه دنيا پسي د دوی له منډ ترړو يې بد راغله.

د ۱۹۲٤ع.کال په پسرلي کي د فرينکفرټر زايټونګ جريدې لخوا بيا مصر ته واستول سو. دغه مهال يې د ژورناليزم په نړۍ‌کي ښه دريځ ترلاسه کړی وو. په دې ترځ کي يې د جامع الازهر د ځوان او متبحر اسلامي عالم امام مصطفی مراغي سره وليدل او د دينونو په هکله يې معلومات ځني تر لاسه کړل. اوس نو هغه ته د قرآن کريم له مطالعې، د عربو د ژوندانه له مشاهدې او د شيخ مراغي له ويناوو څخه په ډېره څرګنده توګه جوته سوه او دې پايلي ته ورسېد چي د اروپايانو په دماغونو کي چي له اسلام څخه څه انځور سته هغه ګردسره په مسخ سوې بڼه ور ښوول سوی دی. اوس هغه بالکل ډاډه سوی وو چي په اسلام کي د دين او يوې ضابطې په حيث هيڅ کمی نسته او د مسلمانانو زوال د اسلام د خامۍ له امله نه دی، بلکي د مسلمانانو د ټولنيز او فرهنګي زوال يو لامل دی او هغه دا چي هغو د مهالونو په تېرېدو سره پر اسلامي تعليماتو باندي د هغو د روح سره سم کړنه پرې ايښې ده.

دغه مهال هغه له شمالي افريقا څخه نيولې د افغانستان د پامير تر لوړو څوکو ټوله اسلامي نړۍ وغوښته او بيا يې تقريباً خپل ټول عمر په همدې سيمو کي تېر کړ. د ۱۹۲۵ع.کال په وروستيو کي چي هغه

له هرات څخه کابل ته تی د منځني افغانستان په واورو پوښلو ناوو زړه او کاته دواړه وړل. په لار کي د هغه آس کوډ غوندي سو، د پښو نالونه يې سست سوي وه او په دوو مېخونو بند وه. ځکه نو د هغه افغان ملګري دوی ته نژدې ښارګوټې د هزاره جاتو دايزنګي ته بوتی.

د هزاره جاتو والي هم هلته اوسېدی، ځکه نو هغه د دغه والي ليدو ته ورغی. والي د اعليحضرت امان الله شاه غازي له نژدې خپلوانو څخه وو. د هغه د ډېر ټينګار له امله يې دوې ورځي ورسره تېري کړې. علامه صاحب فرمايي:

«بل ماښام د مېلمستيا تر ډېري ښې او مکلفي ډوډۍ خوړلو وروسته يوه افغان پر ستار باندي د داود او جالوت کيسه واورول. سندره په پښتو وه او والي ماته د هغې لنډ لنډ ټکي بيانول. په پای کي والي تبصره وکړه او ويې ويل داود کمزوری وو، خو ايمان يې قوي وو. ما سمدستي ورغبرګه کړه: د دې په خلاف تاسي په شمېر ډېر ياست، خو د ايمان له مخي کمزوري ياست. د دې خبري په اورېدو سره زما کوربه ماته په اريانتيا سره وکتل. زه څه وارخطا غوندي سوم او د ډول ډول سوالونو په مطرح کولو سره مي د خپلي خبري د تاويل کوښښ وکړ او وميې ويل: مسلمانانو ولي پرخپلو ځانونو باندي ډاډ او اعتماد هېر کړی دی؟ د هغو د عظمت او سترتوب لمر ولي تندري نيولی دی؟ د هغو د علم او هنر وړتياوي ولي کمزوري سوي دي؟ آيا نه سي کېدای چي مسلمانان له همت څخه کار واخلي او بېرته د هغه ځلاند او پرتمين دين لوري ته وروګرځي؟ دا څونه د عبرت خبر ده چي هغه مصطفی کمال اتاترک چي اسلام هيڅ ارزښت نه ورته لري د مسلمانانو په سترګو کي د اسلام د بيا رغښت

(رنسانس یا نشاة ثانیه) اتل جوړ سوی دی. زما کوربه په ځیر ځیر راته کتل او چي زما خبري خلاصي سوې نو یې وویل: ته مسلمان یې خو په ځان نه پوهېږې، ته ولي کلمه نه وایې او څله نه مسلمانیږې، ځکه تا د زړه له کومي اسلام منلی دی. ما ورته وخندل او ورته ومي ویل: زه نه یم مسلمان، خو ما په اسلام کي یوه عجیبه ښکلا لیدلې ده او کله چي زه وینم چي د دې دین پیروان هغه په لوی لاس بد رنګه کوي ډېر په غوسه کیږم».

د دې ځوان والي دې خبرو پر علامه محمد اسد ډېر ستر اغېز وکړ. هغه په افغانستان کي تر څو اونیو سیاحت وروسته روسیې ته ولاړ او له هغه ځایه اروپا ته ستون سو. دغه مهال هغه په ۲٦ کلنۍ کي واده وکړ. مېرمني یې هم د ده خبري ومنلې. دواړو به د قرآن کریم ژباړه لوستل او د هغه پر لارښوونو به یې بحث کاوه.

د ۱۹۲٦ع.کال په سپتمبر کي یوه شپه دواړو برلین ته په ټرین کي سفر کاوه. په دې هکله خدای بخښلی علامه لیکي:

«موږ ته پر مخامخ سیټ دوه تنه مېړه او مېرمن ناست وه. له کالو، د الماسو له ګوتمیو، او کړو وړو څخه شتمن ښکارېدل، خو په څېرو کي یې د خوښۍ او ډاډ کومه نخښه نه لیدل کېده. ډېر بې برخي او وېرجن ایسېدل. ما شاوخوا وکتل او ومي لیدل چي هرڅوک خوشاله ښکارېدی، د هغه پر څېره مي هم د یوه پټ غم نخښه ولیدل، دونه پټ چي له دوی ټولو څخه یوه هم نه احساساوه.

ما خپل دغه احساس خپلي مېرمني ته ووایه. هغې هم زما خبر ومنل. رشتیا چي داسي ښکارېدل لکه دغه خلک چي په دوږخ کي ژوند کوي. کله چي بیرته کورته را ستانه سوو د مېز پر سر مي هغه

قرآن وليد چي ما يې تلاوت کاوه. ما وغوښتل چي قرآن کريم بند کړم او په الماری کي يې کښېږدم چي نابېره مي سترګي د قرآن د پرانيستي پاڼي پر دې سوره ونښتې:

﴿أَلۡهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ۝١ حَتَّىٰ زُرۡتُمُ ٱلۡمَقَابِرَ ۝٢ كَلَّا سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ۝٣ ثُمَّ كَلَّا سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ۝٤ كَلَّا لَوۡ تَعۡلَمُونَ عِلۡمَ ٱلۡيَقِينِ ۝٥ لَتَرَوُنَّ ٱلۡجَحِيمَ ۝٦ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيۡنَ ٱلۡيَقِينِ ۝٧ ثُمَّ لَتُسۡـَٔلُنَّ يَوۡمَئِذٍ عَنِ ٱلنَّعِيمِ ۝٨﴾ [سورة التكاثر].

ژباړه: «تاسي د شتمنۍ په ګټلو کي ډېر زياتوب او يو له بله په ډېرولو کي لېوالتيا په غفلت کي اچولي ياست. تر دې پوري چي (په دې فکر کي) د قبر څنډي ته ورسېدلاست. هيڅکله داسي نه ده، ډېر ژر به تاسي پوه سئ. بيا (واورئ) هيڅکله داسي نه ده، ډېر ژر به تاسي پوه سئ. که تاسي د باوري پوهي له مخي (د دې چلند په عاقبت) پوهېدلای (نو ستاسي چلند به دغسي نه وای). تاسي به هرو مرو دوږخ وګورئ، بيا (واورئ) چي تاسي به په يقين سره هغه وګورئ. بيا به هرو مرو په هغه ورځ له تاسي څخه د دې نعمتونو په هکله جواب وغوښتل سي».

زه د يوې شيبې لپاره هيښ ودرېدلم، ما فکر کاوه چي کتاب زما په لاس کي پر خوځښت راغلی دی. ما خپلي مېرمني ته ور بږغ کړه: وګوره، آيا دا د هغه څه جواب نه دی چي موږ تېره شپه په ريل کي وليدل؟ موږ ته نه داچي زموږ د سوال جواب راکړه سوی وو، بلکي په دې اړه شکوک او شبهې هم پای ته رسېدلي وې. موږ ومنل چي دا په رشتيا سره د لوی څښتن ﷻ هغه کتاب دی چي ديارلس سوه کاله دمخه پر حضرت محمد ﷺ نازل سوی وو. خو په هغه کي په ډېره څرګندتيا سره داسي وړاند وينه سوې وه چي زموږ له پېچلي ماشيني دور پرته به په کوم بل دور کي نه وي پلې سوې.

اوس زما باور سو چي قرآن د کوم انسان د حکمت او پوهي پایله نه ده. انسان چي هرڅونه پوه او د حکمت څښتن سي بیا هم د هغه عذاب وړاند وینه نه سي کولای چي شلمي پېړۍ ته ځانګړې سوې ده.

بله ورځ زه د برلین د مسلمانانو د ټولني مشر ته ورغلم او ورته ومي ویل چي زه اسلام منم. هغه په ما د شهادت کلمه وویل او ویې ویل چي ستا نوم لیو پولډ دی او په یوناني لیو زمري ته وایي، له دې امله موږ تاته سر له نن څخه محمد اسد وایو.

څو اوونۍ وروسته زما مېرمني هم اسلام راوړ. تر دې وروسته موږ اروپا د تل لپاره پرېښوول».

په دې توګه علامه محمد اسد د اسلام په سپېڅلي دین مشرف سو د ده په پخواني نامه کي LEO راغلی دی چي د LEO او اسد دواړو معنا (زمری) ده.

د اسلام تر منلو وروسته محمد اسد د سعودي عربستان د پاچا ملک عبدالعزیز سلاکار وټاکل سو. هغه د حج فریضه ادا کړه او د شیخ الشهدا او لیث الصحرا عمر المختار (۱۸٦۲ ـ ۱۹۳۱) سره یې په جهاد کي هم برخه واخیسته. په دې ترځ کي هغه عربي ژبه زده کړه او د اسلام تاریخ یې مطالعه کړ. څنګه چي هغه په مکه مکرمه او مدینه منوره کي واوسېد نو په هغو اصلي حالاتو کوم چي رسول کریمﷺ اسلام پکښي تبلیغاوه تر یوې اندازې پوه سو. له مطالعې او موازنې څخه د هغه دا یقین سو چي د مسلمانانو د خپلو لنډ فکریو او خامیو سره سره د اسلام روحاني او ټولنیز نظام اوس هم د انسانیت لپاره ډېر ستر محرک ځواک دی. له دې امله د علامه

محمـد اسـد د ټولـو بوختیـاوو منځـی د اسـلام بیـا راژونـدي کـول وګرځېد. هغه په سعودي عربستان کي تر شپږو کـالو تېرولـو وروسـته هند ته ولاړ او په ۱۹۳٤ع.کال یې همدغه کتاب پـه ډیلـي کـي خپـور کړ. دغه مهال هغه د هند د ډېـرو پوهـانو، پـه تېـره د علامـه اقبـال او سید ابوالاعلی مـودودي رحمـة اللـه علیهمـا سـره وپېژنـدل. هغـه پـه دارالاسلام (پټان کوټ) کي هم واوسېدی.

د پاکستان تر جوړېدو وروسته علامه محمد اسد پـه لاهـور کـي د لوېـدیز پنجـاب د اسـلامي بیـا رغـوني مسـؤول وټاکـل سـو. بیـا د پاکسـتان د بهرنیـو چـارو پـه وزارت کـي پـه دنـده وګومـارل سـو. د پاکستان د اسلامي اساسي قانون د جوړولو د ډلي غـړی هـم وو. بیـا یې په ملګرو ملتونو کي د پاکستان د استازي په توګه هم دنده ترسره کـړه. دغـه مهـال د هغـه بـل کتـاب «روډ ټـو مکـه» (ROAD TO MAKKAH) هم خپور سو. دغه کتـاب د هغـه د اسـلام راوړلـو پـه هکله مفصله کیسه ده چي بیا د (الطریق الی مکة) په نامه وژباړل سو او سـینمایي فلـم هـم ځنـي جـوړ سـوی دی. د نـامتو مسـلمان عـالم محمد مارماډیوک پکتهال تر مړیني څو کالـه وروسـته علامـه محمـد اسد د «اسلامیک کلچر» د میاشتیزي مسـؤول مـدیر سـو. د عمـر پـه وروستیو کي هغه د مراکش طنجې ته ولاړ او د اسپانیې په جبـر الټـر (جبـل الطـارق) کي یـې ـ کـوم چـي لـه درو پېړیـو را پـه دې خـوا د انګرېزانو تر ولکه لاندي دی ـ استوګنه غوره کړه. د هغه د قرآن کـریم ژبـاړه او تفسـیر د (The Message of The Quran) پـه نامـه پـه ۱۹۸۰ع.کال له دارالاندلس، جبرالټر څخه خپور سو. دغه راز هغه د بخاري شریف څه برخي هم وژباړلې او یو شمېر نور ګټور کتابونه یې

هم لیکلي دي. پای علامه محمد اسد د ١٩٩٢ع. کال په فرورۍ کي په جبرالټر کي وفات سو او د هغه د وصیت سره سم د اسپانیې په ګریناډا (غرناطه) کي د مسلمانانو په هدیره کي خاورو ته وسپارل سو.

د خبري رسنیو له خولې په ٢٠٠٨ ع.کال د ویانا ښاروالۍ په دغه ښار کي یوه عامه اُرشو چي د ملګرو ملتونو د مانۍ مخي ته واقع ده د مراسمو په ترځ کي د علامه محمد اسد په نامه ونومول.

# د ليکوال څرګندوني

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده!

دغه کتاب نيمه پېړۍ وړاندي او په صحيحو الفاظو د ۱۹۳۳ع.کال په مني کي ليکل سوی وو او د لومړي ځل لپاره په ۱۹۳٤ع.کال په ډيلي کي خپور سو. بيا په لاهور کي هم خپور سو. ما په دې کتاب کي د خپل توکم مسلمانانو ته ويلي وه چي د لوېديزيانو د ټولنيزو ارزښتونو د پټو سترګو تقليد پرېږدي، د هغه پر ځای د خپل اسلامي ميراث د خوندي کولو کوښښ وکړي کوم چي يو مهال يې هر اړخيز، پرتمين او تاريخي «اسلامي فرهنګ» رامنځته کړی وو.

کله چي لا هندوستان نه وو وېشل سوی، په انګرېزي پوهو مسلمانانو پر اسلامي موضوع باندي زما د دغه لومړني کوښښ هر کلی وکړ. دا کتاب څو ټپاله نور هم چاپ سو. بيا د دې کتاب عربي ژباړه خپره سوه. دې ژباړي د انګرېزي کتاب په پرتله د منځني ختيځ پر لوستو وګړو زښت زيات اغېز وښند. د دې کتاب د زيات هرکلي له امله نورو مسلمانو ليکوالو هم دې ته ورته کتابونه وليکل. دوی زما اصلي موضوع «اسلام د دوه لاري پر سر» نوره هم پراخه کړه. هر ليکوال د خپلو خپلو ذهني تمايلاتو سره سم په بېلو بېلو بڼو او په مختلفو کچو د هغي خبري کوښښ وکړ چي ما په خپل کتاب کي کړې ده، خو هغوی هغو نتيجو ته نه دي رسېدلي کومي چي ما اخيستي وې. زه چي کومو پايلو ته هغه مهال رسېدلی وم، پر هغو

اوس هم ولاړ یم. د نورو لیکوالو نتیجې زما د نتایجو بېخي بر عکس وې. د کتاب لیکلو پر مهال زما موخه داوه چې په مسلمانانو کې د ا شعور را ویښ کړم چې دوی لـه ټولنیز او فرهنګـي پلـوه د لوېـدیزي ډېري پیاوړي ټولني څخه توپیر لري. دغه راز زما بله موخه داوه چې په خپلو ارزښتونو د دوی ویاړل زیـات سـي او پـه دوی کـې دا ولـولې پیدا سي چې خپلي دودیزي اډانې او اداري خوندي کړي څو د بنسټیز توپیر شعور پکښي ژونـدی سـي او پـر مسـلمانانو چـې د پېړیـو پېړیـو څخـه د جمـود حالـت واکمـن دی، لـه هغـه څخـه را ووزي او دغـه شعور یو ځل بیا په فرهنګي ډګر کې پـه تخلیقـي ځـواک واړوي. پـه کتـاب کـې ټـول زور او ټینګـار پـر «بیـا رغونـه» (احیـا) او «خونـدي ساتنه». باندي دی. په دې توګه چې موږ ته ښایي زموږ هغه پخـوانۍ اډانې، اداري او ارزښتونه خوندي کړو چې اوس هـم د دې حقیقـت سره مطابقت لري چې اسلام پخپله فرهنـګ زېږوونکـی ځـواک دی، او د قرآن او سنتو د روح سره سم د اسـلامي نظریـې د بیـا راژونـدي کولو اړتیا ده.

خو د «اسلام د دوه لاري پر سر». د لیکلو پر مهال چې زمـا کومـه موخه وه، د هغې په هکله ځیني مسـلمان لوسـتونکي ناسـم پوهېـدلي وه. او زما د فرهنګي تخلیقیت د بلني په هکله پـه بشـپړه توګـه نـه وه پوهېدلي او داسي فکر ورسره پیدا سـوی وو چـې پـه تېـرو پېړیـو کـې چې د مسلمانانو د زوال کوم صورت حـال وو، د هغـه مهـال ټـولنیزو اډانو او ادارو ته بېرته ورګرځېدل د مهال اړتیا ده.

اما زما چې څه موخه وه دغه فکر د هغې خـلاف وو. پـه اسـلامي نړۍ کې چې څه بیا رغونه سوې او یا کېـږي، هغـه د قـرآن او سـنتو د

رشتيانيو اقدارو او ارزښتونو بيا رغونه نه ده. يو ډول انتشار او تيت او پرک تيا رامنځته سوې ده. ځکه ډېر مسلمانان دې ته چمتو ښکاري چي په منځنيو پېړيو کي چي اسلامي نړۍ کومي ټولنيزي اډاني او ادارې او د فکر او عمل کومي لاري غوره کړي وې، هغه دي په پټو سترګو ومنل سي. په داسي حال کي چي اړتيا دې ته ده چي د اسلام هغي ايډيالوژۍ ته په پوره جرأت ور وګرځو چي د اسلام په رشتيانيو لاسوندونو او اسنادو، لکه قرآن او سنتو کي ځرګنده سوې ده.

په اسلامي نړۍ کي چي نن مهال کوم دردوونکی بېلتون او يو له بله ليري والی را منځته سوی دی د هغه د ليري کولو لپاره د دې کتاب نوی او بيا ځلي کتل سوی چاپ په دې هيله وړاندي کوم چي د نن مسلمان ته داسي ګټه ورسوي، لکه د ۱۹۳٤ع.کال چاپ چي د هغه مهال ځوانانو ته ورسول. نيمه پېړۍ وړاندي چي دغه کتاب خپور سو له هغه وروسته تر اوسه چي کومي پېښي را منځته سوي دي، د هغو له امله د نن مسلمان ځوانان د دې کتاب په معناوو او مطالبو ډېر ښه پوهيږي، او هيله ده چي دغه کتاب خوښ هم کړي. د هغو په وړاندي چي کومي ستونزي پرتې دي دغه کتاب به د هغو په ليري کولو کي مرستندوی جوت سي.

طنجه (مراکش)

محمد اسد

۱۹۸۲ع. کال

## مخکنی خبري

پر انسانیت باندي په پښوا کي داسي فکري خپراوی او انتشار لکه اوس چي په اخته دی په ندرت سره راغلی دی. یوازي دا نه ده چي موږ په داسي بې شمېرو ربړو کي راګیر یو چي د هغو لپاره د یوه نوي او بې ساري حل اړتیا ده، بلکي دغه ربړي په داسي ډول راڅرګندیږي چي له هغو څخه ان موږ خبر هم نه یو. پر هره ټولنه بنسټیز بدلونونه راځي، خو هر ځای د بدلون سیر او پلي کېده بېل بېل وي. د دې سره سم هرځای د بدلون ترشا یو ځواک په پرله پسې توګه کار کوي.

د اسلامي نړۍ حال هم همدغسي دی. دلته هم موږ وینو چي پښوانۍ لاري چاري، خیالات او اندونه ورو ورو له منځه ځي او نوي نوي شیان د هغو ځای نیسي. په دې هکله پوښتني راپورته کیږي چي دغه بدلونونه موږ کومي خواته بیایي؟ دابه لا څونه نور پرمخ ځي؟ او دا د اسلام له فرهنګي موخو او مقاصدو سره تر کومه ځایه سمون خوري؟

موږ په دې واړه کتاب کي دغو ټولو پوښتنو ته مفصل جواب نه دی ورکړی، یوازي مو دا پوښتنه د بحث موضوع ګرځولې ده چي مسلمانان باید د لوېدیز (غربي) فرهنګ په هکله څه کړنلاره غوره کړي. څنګه چي دغه موضوع ډېره پراخه ده، ځکه نو موږ د اسلام پر ځینو بنسټیزو اړخونو هم خبري کوو. د سنتو په هکله په ځانګړې توګه بحث سوی دی. دلته د دې پراخي موضوع یوازي لنډیز وړاندي

کېدای سي. ځکه چي د تفصيل لپاره ضخيم کتابونه په کار دي. زما يقين دی چي دغه لنډ کتابګوټی به پر يوه ډېره مهمه مسئله باندي د غور کولو ډېر ښه محرک جوت سي.

اوس يوڅه زما په اړه ليکم، ځکه څوک چي اسلام مني او بيا مسلمانانو ته څه وايي، نو هغوی دا حق لري چي پوه سي چي هغه اسلام څنګه او ولي قبول کړ.

ما په ١٩٢٢ع.کال له خپل هيواد اتريش څخه د اروپا د ځينو وتلو اخبارونو د ځانګړي استازي په توګه افريقا او آسيا ته سفر وکړ. وروسته ما نژدې ټول عمر په اسلامي ختيځ کي تېر کړ. زما چي د کومو ولسونو سره اړيکي سوې، د هغو سره په پيل کي زما علاقه يوازي د يوه بهرني غوندي وه. په دې دوران کي ما وليدل چي هلته يو داسي ټولنيزچوکات او د ژوندانه نظريه دود او رايجه ده چي له اروپايي نظام څخه بالکل بنسټيز توپير لري. لومړی زما له دې امله د ژوندانه له دغه تصور سره مينه پيدا سوه چي دا د اروپا د بېړني ماشيني ژوندانه په پرتله ډېر له سکونه ډک دی او د انسان سره هم په ډېره مينه او دوستي کړنه کوي. دغي ميني زما سره کرار کرار د دواړو نظامونو تر منځ د توپير د لاملونو د څېړني شوق پيدا کړ. په دې توګه زما د مسلمانانو د مذهبي تعليماتو سره مينه پيدا سوه. دغه مهال زما مينه دونه ژوره نه وه چي زه اسلام ومنم. خو همدغه حال ماته د يوې پرمختيا خوښي انساني ټولني نوې نړۍ څرګنده کړه يوه داسي نړۍ چي داخلي شخړي يې لږ تر لږه دي او د ورورۍ رشتيانۍ ولولې پکښي تر زياتو زياتي دي. د اسلام مذهبي تعليماتو چي کوم غوره امکانات څرګند کړي وه، د ننني مسلمانانو ژوند له هغو څخه

ډېر ليري سوی دی. اسلام پر پرمختګ او خوځښت ټينګار کړی دی، خو نن مسلمان لټ او جامد ګرځېدلی دی. په اسلام کي د فراخ زړه درلودلو او د ځان ښندلو لپاره پر چمتو کېدو ټينګار کيږي، خو نننی مسلمان تنګ نظره سوی او د ژوندانه د هوساييو او خوندونو په محبت اخته سوی دی.

په دغو خبرو باندي پوهېدني زه وهڅولم چي د مسلمانانو د تېرمهال او اوسني حالت د توپير معما حل کړم. ځکه نو ما وپتېيل چي مسئله په ډېره ژوره توګه وڅېړم. ما خپل ځان د اسلام په کړی کي احساس کړ. دا مازي يوه عقلي تجربه وه. په ډېره لنډه موده کي دغه معما حل سوه. ماته څرګنده سوه چي د مسلمانانو ټولنيز او فرهنګي زوال صرف يو لامل لري او هغه دادی چي دوی پر اسلامي تعليماتو باندي د هغو د روح سره سم عمل پرېږ ايښی دی. اسلام اوس هم موجود دی. خو د هغه روح غيبه سوې ده. کوم عنصر چي يو وخت مسلمانان ځواکمن کړي وه، هغه اوس د دوی د کمزوری لامل جوړ سوی دی. له پيله اسلامي ټولنه يوازي پر مذهبي بنسټونو ولاړه وه. اوس دغه بنسټونه کمزوري سوي دي، او دغو کمزورو بنسټونو فرهنګي چوکاټ هم کمزوری کړی دی او کېدای سي چي د فرهنګي چوکاټ د له منځه تلو لامل هم سي.

اسلامي تعليمات بالکل واضح او له هره پلوه د عمل وړدي. په دې خبره چي هرڅونه زه پوهېدم، هغونه يې د جواب موندلو لپاره ناکراره کېدم. او ويل به مي چي مسلمانانو ولي په خپل ژوندانه کي پر دغو تعليماتو کړنه پرې ايښې ده. ما پر دې مسئله باندي د ليبيا له بېديا څخه نيولې د پامير تر غرونو پوري او د باسفورس له آبنا د

عربو تر سمندرګې پورې د پرتو ډېرو هېوادونو د ډېرو مسلمانو مفکرینو سره خبرې وکړې. بیا د هغه سوال د حل کولو په لېونتوب اخته سوم چې له امله یې په اسلامي نړۍ کې زما نوري علمي بوختیاوې پای ته ورسېدلې. ما د یوه نا مسلمان په توګه د اسلام په ننګه او دفاع کې د مسلمانانو سره د اسلام په اړه د هغو پر بې پروایي او پر اسلام د کړني نه کولو په هکله خبرې کولې. په ما کې چې کوم بدلون راتی ما هغه نه احساساوه، تردې چې یوه ورځ د ۱۹۲۵ع.کال په مني کې د افغانستان په غرونو کې یوه ځوان والي ماته وویل: «ته مسلمان سوی یې خو په ځان نه پوهېږې». زه د دې خبرو په اورېدو سره اریان پاته سوم او څه مي نه سوای ویلای. خو کله چې زه په ۱۹۲٦ع.کال بېرته اروپاته ستون سوم نو ما احساس کړه چې زما د دې چلند منطقي پایله داده چې اسلام ومنم.

دا هغه حالات وه چې زه یې له امله مسلمان سوم. تر دې وروسته ماته په پلاوو پلاوو وویل سوه چې «تا اسلام څنګه ومانه؟ او کوم ځانګړې شي اسلام منلو ته وهڅولې؟ زه اعتراف کوم چې زما سره د دې پوښتنو درست جواب نسته. ځکه دا د اسلام کوم ځانګړی تعلیم نه وو چې زه یې د هغه لور ته وهڅولم، بلکي دا د اسلام د اخلاقي ښوونو او د ژوندانه د کړنلارې په منځ کې په زړه پورې همږغي او همرنګي ده چې زه یې ورته هڅولی یم. اوس هم زه نه سم ویلای چې د اسلام کوم اړخ تر بل اړخ زیات د اسلام منلو ته ور بللم. زما په اند اسلام د ودانۍ د هنر د یوې داسي بېلګې غوندې دی چې ټولې برخې یې یو د بلې مرستندویې، بشپړوونکې او همرنګې دي. په دې وو کې نه کوم شی زیات دی چې اړتیا دې نه

وي ورته او نه د کوم شي کمی پکښي سته. دا د ژوندانه یو بشپړ او متوازن نظام دی. غالباً دغه احساس چي په اسلامي تعلیماتو او اصولو کي هر شی پر خپل اصل او موزون ځای باندي دی، زه زیات تر اغېزي لاندي راوستلی یم. پر دې سر بېره ښایي نوري اغېزي هم وي چي اوس یې ماته سپړل ستونزمن کار دی. لنډه دا چي دا د میني او محبت معامله وه.... په مینه کي کېدای سي څو شیان شامل وي. لکه زموږ هیلي، زموږ یوازیتوبونه، زموږ لوړي موخي او زموږ اومتیاوي او نیمګړتیاوي، زموږ ځواکونه او زموږ کمزورۍ. زما سره هم دغسي سوي دي. اسلام زما تیاره زړه ته د نور غوندي راننووت خو بیرته ځني ونه ووت، بلکي د تل لپاره یې ځای پکښي ونیو.

تر دې وروسته ما د اسلام په اړه د هرڅه زیات پوهېدو کوښښ وکړ. قرآن کریم او د رسول مقبولﷺ سنت مي مطالعه کړه. د اسلام د ژبي د زده کولو ترڅنګ مي د هغه تاریخ هم مطالعه کړ. د اسلام په پلوي او مخالفت کي چي څه لیکل سوي وه د هغو ډېره برخه مي ولوستل. نژدې شپږ کاله مي په حجاز او نجد (سعودي عربستان) کي تېر کړه. دغه وخت زیاتره په مکه مکرمه او مدینه منوره کي واوسېدلم، څو ماته د هغو حالاتو څه پته ولګېږي چي عربي پیغمبرﷺ د اسلام دین پکښي تبلیغ کړ. څنګه چي حجاز داسي یوځای دی چي د ډېرو هیوادونو مسلمانان ورځي ځکه نو زه په دې دور کي د اسلامي نړۍ د بېلو بېلو مذهبي او ټولنیزو نظرونو د موازنې وړ وګرځېدم. له دغو مطالعو او موازنو څخه زما پوخ یقین سو چي د مسلمانانو د لنډپاریو له امله د پیدا سوو ورانیو او نیمګړتیاوو سره سره د اسلام روحاني او ټولنیز نظام اوس هم د

انسانیت لپاره ډېر ستر محرک ځواک دی، کوم چې انسانیت یو وار ازمیلي هم دی. له دې امله د اسلام بیا را ژوندي کېده زما د ټولو بوختیاوو او دلچسپیو منځی او محور وګرځېد.

دغه لنډ کتاب همدې ستر نصب العین (اصلي مقصد) ته د رسېدو په لړ کي یو کوچنی خدمت دی. دا نه سي ویل کېدای چې دا د چارو یوه غیر جذباتي څېړنه ده، بلکي دا د یوې ربړي او مسئلې بیان دی. دا د لوېدیز فرهنګ په هکله د اسلام ربړه ده. دا کتاب هغو ته نه دی لیکل سوی چې په اند یې د ډېرو نورو ټولنیزو نظامونو غوندي اسلام هم یو ټولنیز نظام ګڼل کیږي. بلکي دا هغو وګړو ته دی چې په زړونو کي یې د هغو لمبو سکروټې تر اوسه موجودي دي چې یو مهال د اصحابو کرامو رضي الله عنهم په زړونو کي بلي وې. دغو لمبو یو مهال د ټولنیز نظام او فرهنګي بریو په مټ اسلام دونه ستر کړ چې مثال یې نه موندل کیږي.

محمد اسد (ایم. اې)
ډیلی، مارچ ۱۹۳٤ع.

﴿لَّقَدۡ كَانَ لَكُمۡ فِي رَسُولِ ٱللَّهِ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٌ﴾ [الأحزاب: ۲۱]

ژباړه: «په يقين سره تاسي لره د لوی څښتن په استازي کي ستره نمونه (موجوده) ده».

## د اسلام پرانستې لار (د اسلام صراط مستقيم)

د اوسمهال شعار د «فضا تسخير» دی. په دې دور کي مواصلاتو او د وړو راوړو وسايلو دونه پرمختيا کړې ده چي مخکنيو توکمونو د هغو تصور هم نه سو کولای. دغو وسايلو په داسي ډېره چټکتيا او په ستره پيمانه د مالونو لېږد را لېږد آسانه کړ چي په تاريخ کي د انسان په خيال کي هم نه دی ورګرځېدلی. د دې په پايله کي ولسونه يو پر بل باندي تکيې ته اړسوي دي. حال دا سو چي اوس هيڅ ولس بېل نه سي اوسېدلای. اقتصادي پرمختيا اوس په کوم ځانګړي ولس او هيواد اړه نه لري، بلکي نړۍ واله بڼه يې غوره کړې ده. دغه پرمختيا سياسي پولي او جغرافيوي واټنونه په پام کي نه نيسي. د مالونو تر انتقال لا ډېره مهمه خبر داده چي د اندونو (افکارو) او فرهنګي ارزښتونو د انتقال اړتيا مخ پر زياتېدو روانه ده. که څه هم د اقتصادي او فرهنګي ارزښتونو انتقال يو د بل سره جوخت روان دی، خو د لېږد او انتقال لاري چاري بېلي دي. د اقتصادياتو د ابتدايي قوانينو سره سم ولسونه بايد مال يو له بله تبادله کړي. د دې معنا داده چي نه يو ولس يوازي رانيوونکی دی او نه کوم ولس يوازي خرڅوونکی. بلکي هر ولس بايد دواړه کاره وکړي. يعني دا چي هم

به مال رانيسي او هم به يې پلوري. بنايي دا كار په سيخه او مستقيمه توګه وي يا د ټولنيزو ځواكونو ترشا د كاركوونكو عواملو په ذريعه وي. خو په فرهنګي ډګر كي تبادله دغي اوسپنيزي كليې ته اړتيا نه لري. په بله وينا د افكارو او فرهنګي اقدارو تبادله د «واخله او راكړه» د اصولو سره سم نه تر سره كيږي. د انسان دا فطرت دی چي كوم ولسونه او فرهنګونه د سياسي او اقتصادي پلوه زيات ځواكمن وي، هغوی د كمزورو او په كار لږ بوختو ولسونو باندي په علمي او ټولنيز ډګر كي اغيز اچوي او خپله بيا كوم اغيز نه قبلوي. اوس د لوېديزي نړۍ او اسلامي نړۍ ترمنځ اړيكي دغسي دي[1].

د تاريخ پوهانو له نظره پر اسلامي نړۍ باندي د لوېديز فرهنګ يو اړخيز او ځواكمن اغيز د اريانتيا وړ خبره نه ده. كه پر دې اسلامي نړۍ اعتراف كوي كه يې نه كوي. دا د يوه اوږده تاريخي عمل پايله ده چي بېلګې يې نور ځايونه هم موجودي دي. څنګه چي د تاريخ پوهانو غرض له خپلو مشاهداتو څخه دی، نو له دې امله كېدای سي

۱ـ له فرهنګي پلوه د «پېر او پلور» او د موجوده اسلامي نړۍ د منفي كړني دغه تصور وروسته د الجزاير نامتو ليكوال مالك بن نبيؒ نور هم پراخه كړ او پر دې حقيقت يې ډېر ټينګار كړی دی. په دې هكله د دې كتاب په مخكنيو پاڼو كي يادونه وسوه چي يو مهال مسلمانانو تخليقي مقام ترلاسه كړی وو، خو اوس مسلمان نه داچي يوازي لوېديزو مالونو ته اړ دی، بلكي د لوېديزي تكنالوژۍ او تنظيمي طريقو يوازنی خريدار هم دی. او د دې سره سم مسلمانانو د لوېديځ ټولنيز او سياسي تصورات هم منلي دي، په داسي حال كي چي دوی هيڅ هم نه دي وركړي، يعني په بدل كي يې لوېديځ ته خپل مثبت تصورات هيڅ نه دي لېږدولي. (ليكوال)

دوى له خپلو مشاهداتو څخه ډاډه من وي، خو مسلمان لـه دې څخـه نه سي ډاډمن کېداى. د مسلمان پـه وړانـدي مسـئله داده چـي آيـا دى يوازي د بازار رونق دى او کـه د دغـه رونـق زيـاتوونکى. مـوږ څنګـه چي د پيغمبرﷺ منونکي يو، نوله دې امله په حقيقت کي خبره له دغه ځايه پيليږي. زموږ باور دى چي د نـورو مـذهبونو پـه خـلاف اسـلام داسي مذهب نه دى چي په بېلابېلو فرهنګي حـالاتو کـي خپـل ځـان برابرولاى سي، بلکي اسلام خپل بشپړ فرهنګي او ټولنيز نظـام لـري چي هـر څـه يـې پـه ځرګنـده ټاکـل سـوي دي. کلـه چـي کـوم بهرنـى فرهنګ په موږ خپل دودونه او روايات ننباسي، نو موږ بايد لـه خپلـو ځانو پوښتنه وکـړو چي آيـا دغـه بهرنـى اغېـز زمـوږ د فرهنـګ سـره سمون خوري که د هغه خلاف دى؟ او آيا د هغه حقيقـت د اسـلامي فرهنګ په پېړي (جسد) کي تازه وينه باله سي که فاسده وينه؟

د دې پوښتني جواب يوازي له تجربې څخه ترلاسه کېداى سي. له دې امله مـوږ تـه ښـايي چـي د اسـلامي فرهنـګ او تمـدن او لوېـديز فرهنګ محرک ځواکونه وپېژنو او څېړنه وکړو چي د دغو دوو يو لـه بله مرسته تر کومي پولي کېدونکې ده. څنګه چي اسلامي فرهنګ پـه بنسټيزه توګه مذهبي دى، نو له دې امله موږ تـه ښـايي چـي تـر ټولـو دمخه په انساني ژوندانه کي د مذهب په عمومي چلند وپوهيږو.

موږ چي کوم څه ته مذهبي چلند وايـو، هغـه د انسـان د عقلـي او بيولوژيکي جوړښت فطري پايله ده. انسان پخپله د ژوندانه له اسرارو او پټو رازونو څخه پرده نه سي پورته کولاى. انسان د ژوند او مړيني او د لامحدود والي او تل تر تله والي غوټه نه سي پرانيسـتلاى. ځکـه پر دې خبرو داسـي پـرده غوړېـدلې ده چـي څـوک يـې نـه سـي پورتـه

کولای. د انسان عقل د نه تسخیرېدونکو دېوالونو سره د سر وهلو ناکام کوښښ کوي. انسان یوازي دوه کاره کولای سي.

یو دا چي هغه پر ژوندانه باندي په ټولیزه توګه له احاطې او واک ټینګولو او د هغه د پېژندلو له کوښښ څخه لاس واخلي. په دې صورت کي به دی یوازي پر بهرنیو شواهدو بسنه کوي، او خپل نتایج به د بهرنیو تجربو په کړۍ کي محدود پرېږدي. په دې توګه به دی د ژوندانه بېلي بېلي برخي وپېژني کومي چي له عددي او توضیحي پلوه په دونه چټکي یا کراري پر مخ تلای سي لکه د فطرت په هکله چي انساني پوهه په چټکي یا کراري پر مخ ځي. خو هغه تل د اجزاوو په پېژندلو بوخت پاته کیږي او په ژوندانه باندي په کلي توګه پوهېدنه د ده د ادراک او پوهي له پولي څخه جګه وي. د طبیعي علومو اسرار په دغه توګه سپړل کیږي.

بل امکان د مذهب لار ده. دغه لار د ساینس په لار کي خنډ نه رامنځته کوي. د مذهب لار د انسان د دنننۍ او زیاتره د وجداني تجربې په رڼا کي د ژوندانه یو ډول توجیه د دې تصور سره یوځای منلو ته چمتو کوي چي کاینات یو ستر خالق لري چي د هغو مدبر هم دی او د هغو تقدیر یې هم ټاکلی دی او د یوه طرح سوي پلان سره سم یې دغه کاینات په لار اچولي دي. د لوی څښتن ﷻ دغه پروژه تر انساني پوهي لوړه ده. لکه چي دمخه هم وویل سول دغه تصور انسان د ژوندانه د داسي حقایقو او اجزاوو له څېړلو څخه نه راګرځوي چي ځان بهرنۍ مشاهدې ته وړاندي کوي. د دې معنا داده چي بهرني (ساینسي) او دنني (مذهبي) تصورات یو له بله سره په ټکر کي نه دي خو موږ یوازي د مذهبي تصور په مټ پوهیږو چي

ژوند ټوله جوهر او د محرکه ځواک يو وحد ت دی، او د هغه په بېلو بېلو عناصرو کي توازن او «همږغي» سته. د همږغی (هم آهنګی) لفظ زياتره ناسم استعمالیږي. څنګه چي زموږ په تر بحث لاندي مسئله کي دغه لفظ ډېر اهميت لري، له دې امله په دې هکله وضاحت اړين دی. د دې معنا داده چي د انسان په رويو کي بايد همږغي وي. مذهبي انسان پوهيږي چي پر هغه چي څه تېريږي او د هغه په دننه کي چي څه بدلونونه راځي هغه د کومو ړندو او کڼو ځواکونو کار نه دی چي کوم شعور ونه لري او نه د کومي موخي سره بلد وي، بلکي هرڅه چي تر سره کيږي د لوی څښتن ﷻ په مشيت (رضا او اراده) کيږي او دا هرڅه د کايناتو د تقدير يوه برخه ده. په دې توګه انسان د خپل ځان او د حقايقو او شواهدو د معروضي او خارجي نړۍ، يعني د قدرت په منځ کي د تضاد او تناقض د ليري کولو قابل سوی دی. انسان د خپلي روح د ټولو پېچلتياوو، د خپل نفس د غوښتنو او بيري او د خپلو احساساتو او غير يقيني اټکلونو سره يو ځای د يوه داسي فطرت سره تړلی دی چي په هغه کي نعمت او عقوبت، خطره او سلامتي په اريانوونکو او نه توجيه کېدونکو لارو چارو سره يوځای سوي دي، او د انساني ذهن جوړښت او د هغه د فکر کولو ډول په څرګنده د فطرت د کار له طريقو څخه بالکل بېل دی او دغه بېل والی نه د عقل او نه د تجربوي ساينس په ذريعه ليري کېدای سي. دا هغه ځای دی چي مذهب ورننوزي.

د مذهبي تصوراتو او تجربو په رڼا کي معلوميږي چي د انسان په له خپله ځانه خبره خودي (خود آګاه خودي) او په يوه پټه خوله او په ظاهره غير مسؤول فطرت کي روحاني همږغي مونده سي. ځکه چي

د انسان شعور او فطرت چې د هغه په چار چاپېر کې او د هغه په دننه کې موجود دي او دواړه ببل ببل دي، هم د کايناتو د خالق په مشيت پورې اړوند ښکارندي او مظاهر دي. له مذهب څخه چې انسان ته سمدستي او فوري ګټه رسيږي هغه داده چې په ده کې دننه دا احساس پيدا کيږي چې دی له ازله تر ابده د روان تخليقي عمل يو منظم واحد دی. په بله وينا دی د کايناتو د لامحدود وجود يوه ټاکلې برخه ده چې خالق د ده لپاره مقدر کړې دي. د دې تصور په نفسياتي پايله کې د انسان په دننه کې د روحي سلامتۍ ژور احساس رامنځته کيږي. په دې توګه د هيلي او بيرې (خوف او رجا) په څرنګوالي کې اعتدال او منځلارې پيدا کيږي. چې په دې توګه مذهبي انسان ـ په هر مذهب چې وي ـ له هغو وګړو بېلوي کوم چې هيڅ مذهب ونه لري.

په ټولو سترو مذهبونو کې ـ اصول چې يې هرڅه وي ـ دا خبره يو شان ده چې د انسان د اخلاقي وجود تصور وړاندې کوي. د دې تقاضا داده چې انسان د لوی څښتن ﷻ د ارادې په وړاندې سر ټيټ کړي. خو اسلام تر دې لا هاخواته خبره کوي او موږ ته را زده کوي چې ژوند يو وحدت دی. ځکه چې دا د يوه رشتياني معبود تخليق دی. پر دې سربېره اسلام موږ ته هغه عملي لار هم راښيي چې هر څوک پر ولاړ سي په خپلو انفرادي مځکنيو پولو کې په اوسېدو سره په خپل وجود او شعور دواړو کې د فکر او عمل يووالی رامنځته کولای سي. دې ستر نصب العين ته د رسېدو لپاره اسلام موږ ترک دنيا ته نه اړباسي او نه مو د روحاني تزکيې لپاره د کومي پټې دروازې پرانيستلو په موخه رياضتونو او خوارۍ کښلو ته مجبوروي. اسلام د

ژغورني لپاره پر هغو خبرو باندي چي د فهم او درک وړ نه وي د یقین کولو په خاطر پر انساني ذهن باندي فشار نه راوړي. دغسي غوښتني په اسلام اړه نه لري. ځکه اسلام کومه جوګیانه فلسفه نه ده. بلکي اسلام د فطرت د قوانینو سره سم د ژوند کولو کړنلار ښيي کومه چي حکم یې لوی څښتن خپل مخلوق ته کړی دی. د انسان د تخلیق او د هغه د بریالیتوبونو د کمال او بشپړتیا ټکی دادی چي د هغه په روحاني او مادي اړخونو کي بشپړه همږغي او هم آهنګي رامنځته سي. اسلام د انسان د جسماني وجود او د هغه د اخلاقي وجود ترمنځ شخړه او کشمکش پای ته رسولی دی. بلکي اسلام پر دې ټینګار کوي چي د دې دواړو وجودونو د یوبل سره په پیوستون او همږغي کي اوسېدل د ژوند فطري بنسټ دی.

زما په اند په لمانځه کي لا په همدغسي ځانګړې بڼه د هغه د اداکولو لامل دادی چي په هغه کي د جسماني افعالو او روحاني ارتکاز ګډون او امتزاج رامنځته کيږي. د اسلام مخالفین د لمونځ کولو طریقه په ځانګړې توګه تر نیوکو لاندي نیسي او هغه د خپل دې تور د ثبوت لپاره وړاندي کوي چي اسلام د دود، رواج او ظاهر دارۍ مذهب دی. د دوی د دې تور حقیقت دادی چي د نورو مذهبونو پیروان جسم او روح یو له بله سره بېلوي. د دې مثال داسي دی لکه کوم غوا والا چي له شیدو څخه پیروی بېل کړي. دوی په آساني سره په دې نه پوهیږي چي د اسلام په شیدو کي چي پیروی یې نه دی تول سوی، دغه دواړه توکي د خپل خپل ځانګړي جوړښت سره سره همرنګه او هم آهنګه دي. په بله وینا په لمانځه کي ذهني حضور او جسماني افعال دواړه شامل دي، ځکه چي

انساني ژوند هم له دغو دواړو څخه جوړ دی، او موږ د لوی ښښتن په وړاندي د خپلو ټولو هغو وړتیاوو او ځواکونو په هکله چي پر موږ یې لورولي دي جواب ورکوونکي یو.

د ا خبره د کعبې شریفي له طواف څخه هم ښه څرګندیږي. څوک چي مکې مکرمې ته ځي هغه ته لازمه ده چي د کعبې شریفي طواف وکړي. د حاجیانو په درو مناسکو کي طواف هم شامل دی. موږ دا سوال کولای سو چي دا څه معنا لري؟ آیا دا ضرور ده چي موږ خپله ارادتمندي اوعقیده په یوه رسمي طریقه سره څرګنده کړو؟ جواب بالکل څرګند دی. که موږ د کوم شي پر شاوخوا راوګرځو نو د دې معنا داده چي هغه شی زموږ د عمل مرکزي نقطه ده. کعبه چي موږ یې پر لوري پر لمانځه دریږو د لوی ښښتن د وحدانیت نخښه ده. دغه راز د حج پر مهال د کعبې طواف دا څرګندوي چي نه یوازي زموږ د عقیدت مندانه افکارو، بلکي زموږ د عملي ژوند، زموږ د افعالو او کوښښونو په مرکز کي باید د لوی ښښتن او د هغه د وحدانیت تصور ځای نیولی وی، لکه چي په قرآن کریم کي فرمایي:

﴿وَمَا خَلَقۡتُ ٱلۡجِنَّ وَٱلۡإِنسَ إِلَّا لِيَعۡبُدُونِ ۝٥٦﴾ [الذاریات: ٥٦].

ژباړه: «او ما پیریانان او انسانان د دې لپاره پیدا کړي دي چي یوازي زما عبادت وکړي».

په دې توګه په اسلام کي د عبادت مفهوم د نورو دینونو په پرتله بېل دی. ځکه د اسلام له مخي عبادت یوازي روحاني تمرین نه دی. لکه لمونځ یا روژه. بلکي عبادت د انسان په ټوله عملي ژوندانه کي نغښتی دی. که زموږ د ژوند ټول مقصد د لوی ښښتن عبادت دی نو موږ باید خپل ژوند له هره پلوه هر اړخیز اخلاقي مسؤولیت وګڼو.

په دې توګه زموږ ټول اعمال که هرڅونه کوچني هم وي د عبادت حیثیت لري. ځکه نو موږ باید د دغو ټولو اعمالو په هکله په شعوري توګه پوه سو چي دا د لوی څښتن د کایناتي پلان یوه برخه ده او باید تر سره یې کړو.

دغه چاري د منځنۍ کچي وړتیا لرونکو وګړو ته د هغه ایډیال حیثیت لري چي د څه ورهنې نه وي. خو آیا د مذهب موخه دا نه ده چي ایډیالونو ته حقیقي بڼه ورکړي؟

په دې هکله د اسلام دریځ بېخي څرګند دی. اسلام موږ ته لومړی دا سبق راکوي چي انسان دي د خپل ژوندانه په هره برخه او هره څانګه کي د لوی څښتن عبادت وکړي او دا د ژوند موخه ده، او بیا دا سبق راکوي چي که ژوند پر دوو برخو؛ ماده او روح باندي وویشل سي دغه موخه نه سي ترلاسه کېدلای. کله چي ماده او روح په یوه همرنګه وحدت وپېیل سي نو موږ دغه موخه ترلاسه کولای سو. د لوی څښتن وحدانیت د ژوند په مختلفو اړخونو کي د مطابقت او وحدت په پیدا کولو سره څرګندېدای سي.

د دې خبرو په منطقي پایله کي د اسلام او نورو مذهبونو تر منځ توپیر ډېر ښه څرګندېږي. دغه توپیر له دې څخه هم څرګندېږي چي اسلام د لوی څښتن او انسان ترمنځ یوازي روحاني اړیکي نه څرګندوي، بلکي اسلام د انسان او د هغه د ټولنیز چاپېریال په منځ کي دنیوي اړیکي هم څرګندوي. دنیوي ژوند صرف خالي پوست او د آخرت بې معنا سیوري نه دی، بلکي دا یو مثبت وحدت دی. لوی څښتن خپله هم یو وحدت دی، نه د ذات په جوهر کي، بلکي په موخه او مقصد کي هم وحدت دی. له دې امله د لوی څښتن تخلیق

هم يو وحدت دی، چې نه يوازې جوهر، بلکې د موخې له اعتباره هم په يقين سره يو وحدت دی.

د باري تعالی د ذات پېژندل او معرفت د اسلام سره سم د انسانې ژوندانه له پوهېدو څخه عبارت دی او دغه پېژندګلوي ده چې په مټ يې انسان په دنيوي ژوندانه کې د بشپړتابه تر درجې رسېدلای سي. په ګردو مذهبونو کې يوازې اسلام دا وايي چې په دنيوي ژوند کې د فرد بشپړتيا ممکنه ده. اسلام د عېسويت غوندې د حياتي غوښتنو پر لېزيمه کولو او خوارولوټينګار نه کوي، نه د هندوانو غوندې د آواګون (د هندوانو د عقيدې سره سم په پلاوو پلاوو د مړ کېدلو او بيرته ژوندی کېدلو لړی؛ تناسخ) خبري کوي، او نه د بودا د مذهب غوندې وايي چې د انسان ژغورنه او بشپړتيا د هغه د ځان، د هغه د غوښتنو او دنيوي جذباتي اړيکو په لېزيمه کولو او خوارولوپوري اړه لري. بلکې اسلام دا وايي: انسان چې په دنيوي ژوند کې خپلې ټولې وړتياوې او ځواکونه په کار واچوي د بشپړتابه تر کچې رسېدلای سي.

د غلط فهمۍ د ليرې کولو لپاره د بشپړتابه (تکميل) د اصطلاح وضاحت ډېر اړين دی. څنګه چې انسان له بيولوژيکې پلوه يو محدود مخلوق دی، له دې امله موږ د «مطلق» تکميل (بشپړتابه) خبره نه سو کولای. ځکه چې د مطلق په دايره کې يوازې الهې صفات راځي. له دې امله له اروايي او اخلاقي پلوه د انسان بشپړتيا په پرتليزه توګه او په ډېره محدوده معنا کارول کيږي. له دې څخه موخه هيڅکله دا نه سي کېدای چې ټول ښه صفات دې په انسان کې موجود وي، او نه بايد داسې پوه سو چې په نړۍ کې چې څه ښېګڼې

دي هغه دي ټولي کرار کرار پـه ځـان کـي جـذب کـړي. بلکـي لـه دې څخه صرف مـراد دادی چـي پـه انسـان کـي چـي څـه مثبـت صـفتونه موجود دي، هغو ته په داسي ډول پرمختيا ورکـړي چـي پـه هغـه کـي ټول ځواکونه او وړتياوي راويښـي سـي. د ژوندانـه د رنـګ پـه رنـګ والي لامل دادی چي لوی ښتن پـر هـر انسـان بانـدي لـه بـل انسـان څخه بېل ځواکونه او صلاحيتونه پېرزو کړي او ورکـړي دي. لـه دې امله به دا خيال سم نه وي چي ټول انسـانان يـو ډول بشـپړتيا ترلاسـه کـولای سـي. د دې مثـال داسـي دی چـي د ځغاسـت لوبـو آس او بېديانی آس دواړه په انفرادي توګه د بشپړتيا سره سـره د خپلـو ځينـو بنسټيزو ښېګڼو له امله يو له بله بېل دي. د عېسويت په انـد راهـب او سينټ (Saint) (ولي او لوی سـړی) جوړېـدل د انسـان بشـپړتيا بالـه سي. که دغه معيار ومنل سي نو بيا انسان اړوزي چي خپل انفراديـت پرېږدي يا يې بدل کړي او يا فشار پر راولي. خو دا به د لـوی ښتـن له قانون څخه سر غړونه وي، ځکه چي هغه هر فرد بېـل بېـل انسـان جوړ کړی دی. له دې امله پر نړۍ باندي رنګ په رنـګ والـی واکمـن دی، او له دې امله څنګه چي اسلام د هيلو او ولولو د لېزيمه کولو او خوارولو مذهب نه دی، هر انسان ته د هغه د ځـاني او ټـولنيز وجـود لپاره پراخ ډګر برابـروي، څـو هغـه د خپلـو صـفاتو، مـزاج او روحـي تمايلاتو او وړتياوو سره سم پرمختګ وکړای سي.

نو يو انسان راهب وي که پـه کومـه قـانوني څانګـه کـي کـارکوي د خپلو ټولو هيلو له ترلاسه کولو څخه خوند اخيستلای سـي. دغـه راز که څوک کډه‌پـه شـا او د بېـدياوو کـوچی وي او د سـبا ډوډي هـم ونـه لري او که موړ سوداګر وي او پـه پيسـو کـي لـوبي کـوي، کـه د لـوی

ښځېنتن د احکامو پیروي کوي، نو هغوی د خپل فطرت په لارښوونه د خپلې خوښې سره سم د خپل شخصي ژوند په تېرولو کې آزاد دی. د هغه دنده ده چې خپلې وړتیاوې او ځواکونه ډېر ښه وکاروي څو د هغو نعمتونو شکر چې د هغه خالق پر ده لورولي دي ادا کړي.

پر دې سربېره دی باید د لوی ښځېنتن ورکړې نعمتونه؛ یعنې د ده وړتیاوې او ځواکونه د انسانانو سره د روحاني، ټولنیزو او مادي مرستو د تر سره کولو لپاره په کار واچوي. خو داچې په ژوند کې دی کومه لار غوره کړي؟ د دې لپاره کومه پیمانه نه ده ټاکل سوې. د ده په وړاندې بې شمېرې روا لارې پرانیستې دي. دی له هغو څخه هرې یوې په غوره کولو کې آزاد دی. په اسلام کې د دې آزادۍ بنسټ دادی چې انسان فطرتاً نېک دی. د عېسویت تصور دادی چې انسان له آره ګنهګار دی. د هندوانو د دین د تعلیماتو سره سم انسان ذلیل او ناپاک دي، او د ځان د ژغورنې لپاره باید د «آواګون» د نه ختمېدونکې لړۍ کړاوونه پر ځان تېر کړي. خو د دې په خلاف د اسلامي تعلیماتو سره سم انسان معصوم (پاک او بې ګناه) پیدا کیږي، چې په دې معنا انسان بالقوه بشپړ دی، لکه چې په پورته ډول یې په هکله څرګندوني وسوې. په قرآن کریم کې دي:

﴿لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَـٰنَ فِىٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ۝٤﴾ [التين: ٤].

ژباړه: «موږ انسان پر ډېر ښه جوړښت پیدا کړ».

د دې تر څنګ یې دا وفرمایل:

﴿ثُمَّ رَدَدْنَـٰهُ أَسْفَلَ سَـٰفِلِينَ ۝٥ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ۝٦﴾ [التين: ٥-٦].

ژباړه: «بيا موږ هغه تر ټولو لاندنيو لاندي کړ، پرته له هغو کسانو چي ايمان يې راوړ او ښه عملونه کوي».

په دې آيتونو کي دا اصول بيان سوي دي چي انسان په پيل کي نېک او معصوم وو، خو پر لوی څښتن باندي د ايمان نه راوړلو او نېکو چارو د نه ترسره کولو له امله د هغه فطري بشپړتيا بربادېدلای سي. په بله وينا انسان په خپل انفرادي حيثيت کي تربشپړتابه رسېدلای سي، په دې شرط چي هغه په شعوري توګه د لوی څښتن پر وحدانيت باندي ايمان ولري او د هغه د قوانينو په وړاندي د تسليم سر ټيټ کړي. د دې معنا دا سوه چي د اسلام په اند انسان بد نه دی او په فطري توګه په هغه کي بدي نسته، بلکي هغه بدي په خپل شعوري ژوند کي پخپله غوره کوي. لوی څښتن چي پرانسان باندي کومي فطري مثبتي وړتياوي پېرزو کړي دي، د هغو له ناسم استعمال څخه شر پيدا سي. دغه وړتيا وي په هر چا کي بېلي بېلي وي او بالقوه بشپړي وي. د هغو پوره وده د دنيوي ژوند په اوږدو کي ممکنه ده. زموږ باور دی چي په اخروي ژوندانه کي چي زموږ احساسات او تصورات بالکل بدلون ومومي موږ ته به نوي ځواکونه او صلاحيتونه راکړل سي چي له امله به يې د انساني روح نوره وده ممکنه سي. که څه هم دا په اخروي ژوند پوري اړه لري، خو په دنيوي ژوند کي هم چي هر وګړی خپلو مثبتو وړتياوو او تمايلاتو ته پرمختيا ورکړي خپل شخصيت بشپړولای سي.

په ټولو اديانو کي يوازي اسلام انسان ته دا ممکنه کړې ده چي د خپل روحانيت له قربانۍ پرته له دنيوي ژوند څخه خوند واخيستلای سي. دا خبره د عېسويت له تصور څخه څونه بېله ده! د عېسويت له

مخې پر انسان د آدم او حوا (علیهما السلام) ګناه نښتې ده. چې له امله يې د انسان ټول ژوند له بخولو او مصايبو ډک سوی دی. د عېسويت په نزد دنيا د دوو مختلفو ځواکونو؛ خير او شر د کشمکش ميدان دی، د شر نماينده ګي شيطان کوي او د خير نماينده ګي حضرت عيسی ﷺ کوي. شيطان حيواني غوښتني را پاروي او د ابديت پر لور د انساني روح د وړاندې تلو مخه نيسي، او روح په عيسی ﷺ اړه لري. د دې معنا دا سوه چې انساني جسم د شيطان د نخښې ويشتلو ځای دی. داخبره داسي هم کېدای سي چې مادي نړۍ په بنسټيزه توګه د شيطان نړۍ ده. خو د روح نړۍ «الهي» نړۍ او نېکي ده. د عېسوي دينياتو سره سم د انسان په فطرت کي هره مادي غوښتنه وي. د دې پايله وه چې آدم ﷺ د شيطان سلا مشوره منلې وه. له دې امله انسان بايد د خپلي ژغورني لپاره په دې دنيا زړه ونه تړي، بلکي په روحاني نړۍ زړه وتړي کومه چې حضرت عيسی ﷺ پر سولۍ وځړول سو او د آدم ﷺ د ګناه کفاره يې ادا کړه.

که څه هم په عملي ژوندانه کي پر دې مسيحي نظريه هيڅکله هم عمل نه دی سوی، خو د دې تعليماتو په شتون کي په مذهبي انسان کي دا احساس په مستقله توګه موجود وي چې د هغه ضمير سم نه دی. په دې توګه انسان د دوو غوښتنو د کشمکش ښکار کيږي. يوه دا چې دنيا پرېږدي او بله دا فطري غوښتنه ده چې د دنيا له خوندونو څخه ګټه واخلي. د آدم ﷺ دغه ښکاره ګناه چې ژغورنه ځني ممکنه نه ده او د هغې د کفارې په دود د حضرت عيسی ﷺ سولۍ ته پورته کېدل کومه چې عامو انسانانو ته د فهم او درک وړنه ده، د دې تصور

د انسان د روحاني پرمختګ او د هغه د روا دنیوي غوښتنو په منځ کې یو دېوال دروي.

په اسلام کې د «لومړنۍ ګناه» کوم تصور نسته. دغه تصور د لوی ښښتن د عدل مخالف دی. لوی ښښتن کوم کوچنی د هغه د مور او پلار په ګناه نه نیسي، بیا نو دا څنګه ممکنه ده چې هغه د پلار په ګناه بې شمېره توکمونه ونیسي؟ د دې عجیب تصور فلسفي توجیه هم ممکنه نه ده. د دې هر ډول توجیه چې وسې د عقل په نزد به مصنوعي وي او د قناعت وړ به نه وي. دغه راز د تثلیث د فلسفې عقلي توجیه هم ممکنه نه ده. څنګه چې په اسلامي تعلیماتو کې څوک د پلار او نیکه په ګناه نه نیول کېږي، ځکه نو انسان د هغه کفاره نه اداکوي. ګناه او توبه د انسان ځاني کار دی. هر مسلمان د خپلو اعمالو مسؤول دی د روحاني بریالیتوبونو او ناکامۍ احساس د هغه په خپل زړه کې وي. په قرآن کریم کې ویل سوي دي:

﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا ٱكْتَسَبَتْ﴾ [البقرة: ۲۸٦].

ژباړه: «چا چې څه ښه اعمال تر سره کړي دي د هغه په حق کې ورکول کېږي او چاچې څه ناوړه اعمال تر سره کړي دي د هغو ګناه پر هغه ده».

بل ځای فرمایي:

﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴿٣٩﴾﴾ [النجم: ۳۹].

ژباړه: «او دا چې انسان ته هغه ورکول کېږي چې کوښښ یې کړی دی».

اسلام که څه هم د سینټ پال په عیسویت کې د بیان سوي ژوند تیاره نقطهٔ نظر نه مني، خو موږ ته راښیي چې دنیوي ژوند ته هغه

خبري منسوبي نه کړو کومي چي نوی لوېدیز (غربي) فرهنګ یې ورته منسوبوي. مسیحیت دنیوي ژوند بد ګڼي، خو نوي لوېدیځ (غرب) د مسیحیت مخالف فکر خپل کړی دی. چي خوره یې، چیښه یې او عیش کوه. دغسي انسان هرڅه ګڼډي ته اچوي خو څه قدر یې نه کوي. د دې برعکس اسلام د دنیوي ژوند قدر خو کوي مګر هغه خپل معبود نه جوړوي، بلکي دنیوي ژوند د ډېر لوړ ژوندانه د لاري بیولوژیکي پړاو ګڼي. څنګه چي دا یو داسي پړاو دی چي ډېر اړین دی، ځکه نو اسلام له دنیوي ژوند څخه نه کرکه کوي او نه د هغه بې قدري کوي. زموږ دنیوي سفر د لوی څښتن د پلان یوه اړینه او مثبته برخه ده، له دې امله انساني ژوند ډېر ستر ارزښت لري. خو موږ باید دا هېره نه کړو چي دغه ژوند یوه ذریعه ده. په اسلام کي د لوېدیځ دې مادي هیلو ته ځای نسته چي وایي: «زما پاچهي صرف دغه دنیا ده». او نه اسلام د عېسویت د دې تصور ملاتړی دی چي وایي: «زما سلطنت پر دغه دنیا نه دی». اسلام منځنۍ لار غوره کوي او دا دعا راښیي:

﴿رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗ وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ حَسَنَةٗ وَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ ٢٠١﴾ [البقرة:۲۰۱].

ژباړه: «ای زموږ لويه څښتنه! په دې دنيا کي هم موږ ته ښېګڼي راپه برخه کړې او په آخرت کي هم ښېګڼي راکړې».

له دې امله له دې نړۍ څخه ګټه ترلاسه کول زموږ د روحاني پرمختګ په لار کي نه خنډ کيږي. مادي خوښۍ که څه هم په خپل ذات کي نصب العين نه دي خو ښې خامخا دي. زموږ د عملي بوختياوو موخه بايد تل داوي چي يو داسي انفرادي او ټولنيز

چاپېريال رامنځته کړو چې د انسان د اخلاقي پر مختګ لپاره جوړ وي. د دې اصولو په رڼا کې اسلام انسان ته اخلاقي مسؤوليتونه متوجه کوي. اړينه ده چې زموږ هر عمل، کوچنی وي که لوی په اخلاقي چوکاټ کې وي. د انجيل مشهوره مقوله ده: «څه چې د قيصر دي قيصر ته يې ورکړه او څه چې د خدای دي خدای ته يې ورکړه». خو په اسلام کې دا خبره ځای نه لري. ځکه اسلام موږ ته رازده کوي چې د هر څه څښتن خدای تعالی دی او اسلام زموږ د ژوند د ټولنيزو، اقتصادي او اخلاقي چارو په منځ کې څه شخړه نه مني. په هره چاره کې انتخاب صرف يو وي: حق يا باطل. د دې وو په منځ کې بل څه نسته. له دې امله پر نېکو اعمالو ډېر ټينګار کيږي، کوم چې د اخلاقياتو لازمي برخه ده.

د هر مسلمان چار چاپېر چې څه کيږي تر يوې کچې دی هم د هغو مسؤول دی. له دې امله ده ته ښايي چې په هر ډګر کې د حق د قايمولو او د باطل د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې وکړي. دغه خبر د قرآن کريم په دې آيت کې بيان سوې ده:

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ﴾ [آل عمران: ١١٠].

ژباړه: «تاسي په نړۍ کې هغه غوره ډله ياست چې د وګړو د لارښوونې او اصلاح لپاره منځته راوړل سوې ده. تاسي د نېکۍ امرکوئ او له بديو منع او پر الله ايمان لرئ».

د اسلام د جګړه ييزو بوختياوو لپاره دغه ډول اخلاقي جواز سته. او د اسلام د لومړنيو سوبو او فتوحاتو او څرګندي پراختيا غوښتني دغه دليل دی. که کوم څوک د پراختيا غوښتني د لفظ پر استعمال

ټینګار کوي نو یقیناً اسلام ځیني وختونه پراختیا منونکی پاتـه سـوی دی. خو د دې پراختیـا هڅـونکې غلبـه او واک ټینګـول نـه وه. د دې موخه اقتصادي پرمختیا یا ملي ویاړ ګټل یـا د مسـلمانانو د عـیش او آرامۍ لپاره د نورو د شتو او دولت په زور ترلاسه کول هـم نـه وه، او نه هم کله مقصد ځني د نامسلمانو په زور مسلمانول وه. بلکـي د دې پراختیا غوښتني موخه چي اوس هم ده دا وه چي داسي یو چاپېریـال رامنځته سي چي په هغه کي انسان په ډېره ښه توګه روحاني پر مختیا وکړي. د اسلامي تعلیماتو سره سم اخلاقپوهنه له ځانه یو لړ پابنـدۍ لګوي. یوازي په نظري توګه د حق او باطل تـرمنځ پـه تـوپیر پوهېـدل څه ګټه نه کوي. په دې هکله له پوهي څخه موخه د حـق ټینګښـت او د باطلو له منځه وړل دي. دا په خپـل ځـان کـي سـتر مسـؤولیت دی. ځکه پر نړۍ باندي زموږ له ولکې او واک ټینګولـو څخـه اخلاقیـات ژوندي کیږي، که نه مري.

## د لوېدیځ روح

په لومړي باب کي د اسلام د اخلاقي بنسټونو د نخشـې د وړانـدي کولو کوښښ وسو. له هغه څخه موږ ته څرګنـده سـوه چـي اسـلامي تهذیب په تاریخ کي د مذهبي واکمنۍ ډېر مکمل شکل وو[1].

---

۱ـ دلته به دا څرګنده کړم چي زه د تهیو کراسۍ (مذهبي واکمنۍ) لفظ په هغو معناوو نه کاروم چي په لوېدیځ کي په عامه توګه استعمالیږي. لوېدیځ د خپلو تاریخي تجربو په رڼا کي مذهبي ریاست د کلیسا سیاسي اختیارات بولي. یعني په منځنیو پېړیو کي د مسیحي کلیسا او پادریانو سیاسي واک. د دې په مقابله کي اسلام پاپائیت نه مني او نه په اسلام کي د مسیحي کلیسا کومه

په اسلام کي روحاني چاري پر ټولو لوړوالى لري، نور ټول شيان تر هغو کښته وي. که موږ دغه چاري د لوېديز تهذيب سره پرتله کړو نو به ډېر غټ توپير پکښي وليدل سي.

د نوي لوېديځ د ټولو بوختياوو او هلو ځلو منځى عملي ګټه او خوځنده ارتقا ده. د دوى اصلي موخه د ژوند د وړتياوو د پېژندلو په هکله تجربې کول دي. په دې هکله دوى اخلاقيات نه پېژني. د نوو اروپايانو يا امريکايانو په نزد دا خبره څه حيثيت نه لري چي ژوند څه دى او موخه يې څه ده. د دوى په نزد دا سوال ارزښت لري چي ژوند کومي کومي بڼي اخيستلاى سي او آيا انساني توکم د دې کايناتو د ښتن کېدو پر لور پرمختګ کولاى سي؟ نوي اروپايان او امريکايان د دغه وروستي سوال جواب مثبت ورکوي، خو مسلمان پر دې يقين نه لري. په قرآن کريم کي د آدمعليه السلام او د هغه د اولادې په هکله فرمايي:

﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ [البقرة: ٣٠].

ژباړه: «زه په مځکه کي د يو خليفه جوړوونکى يم»[١].

---

اداره رامنځته کېداى سي. ځنګه چي موږ مسلمانان له تهيوکراسۍ څخه خبري کوو نو دا هغه ټولنيز او سياسي چوکاټ دى چي قوانين يې د شريعت سره سم جوړېږي. په دې هکله زما د کتاب «په اسلام کي د واکمنۍ او حکومت اصول» ( The Principles of state and Government in Islam) د «اصلاحات او تاريخي بېلګې» باب وګورئ.. (ليکوال)

١- د قرآن کريم د دغه آيت د تشريح لپاره د علامه محمد اسد د ژباړي او تفسير The Message of The Qu'ran پر ٨ مخ باندي ٢٢ لمبر نوټ وګورئ.

له دې څخه په څرګنده جوتيږي چې د انسان لپاره پر مځکه باندي واکمنـي ټينګـول او پرمختـګ کـول مقـدر سـوي دي. خـو دا چـي پرمختګ به څه ډول وي؟ په دې هکله د اسلام او لوېديځ نقطهٔ نظـر ستر توپير لري. نوی لوېديځ وايي اخلاقي او ټولنيزه پرمختيا بايد پـه مجموعي توګه وي کومه چي لـه عملي بريـاليتوبونو او ساينسـي انـد دود څخه ترلاسه کېدلای سي. اسـلامي نقطـهٔ نظـر د لوېـديځ د مـاده پال تصور پـه خـلاف دی. اسـلام «د انسـانيت» روحـاني امکانـات د سکون په کچه کي ګڼي کوم چي د انسان په فطرت کي اخښـل سـوي دي. اسلام د لوېديځ غوندي داخبره منلې نه بولي چي انساني فطرت په مجموعي او ډله ييزه توګه د بدلون يا ارتقا پر لـور د ونـي پـه شـان وړاندي درومي.اسلام وايي چي انساني فطرت کوم بيولـوژيکي تـوکی نه دی. د نوي لوېديز فکر اساسي غلطي داده چي هغه مادي علـوم او عيش او چړچې د اخلاقي پرمختـګ سـره هـم معنـا ګڼـي. دا هغسـي غلطي ده چي بيولوژيک اصول پر هغو حقايقو چي بيولوژيک نـه دي پلي کړل سي. له آره نوی لوېديځ د روح پر موجوديت يقين نـه لـري. اسـلام خـو آسـماني مـذهب دی. هغـه روح د يـوه حقيقـت غونـدي داسي بيانوي چي بايد کومه شبهه پکښي نه وي.

که څه هم مادي پرمختيا او روحاني پرمختيا يو له بله په ټکر کـي نه دي، خو دا دواړه يو شی هم نه دي. دا پـه څرګنـده توګـه د انسـاني ژوندانه دوه اړخه دي او د هغو د پرمختيا لپـاره د يـوه پـر بـل بانـدي انحصـار اړيـن نـه دی. دا دواړه بېـل بېـل، کـه څـه هـم تـل نـه وي، پرمختګ کولای سي.

اسلام که څه هم د انسانیت ډله ییزه مادي پرمختیا خوښوي، خو د هغه په نزد د انسانیت روحاني پر مختګ ډله ییزه معامله نه ده. چي د ټولیزو بریالیتوبونو وسیله سي. بلکي دا د انسان انفرادي معامله ده، او د هر فرد د روحي او اخلاقي پرمختیا کړه وړه کرښه د هغه له زېږېدو څخه تر مړیني پوري په ممکنه توګه لوړه او کښته روانه وي. موږ په ټولیزه او دسته جمعي توګه د بشپړتیا پر لور وړاندي نه سو تللای. ځکه نو هر شخص باید په انفرادي توګه د روحاني نصب العین د ترلاسه کولو لپاره په هڅه کي وي. د دې د پیل او پای مسؤول هم خپله شخص دی.

د ټولني او ټولنیزو اړیکو ځواکمني اسلامي نظریې د انسان د روحاني تقدیر انفرادي نقطهٔ نظر متوازن کړی او په بالواسطه توګه یې هغه تایید کړی هم دی. د اسلامي ټولني دنده ده چي د افرادو د بهرني ژوندانه لپاره داسي رغند چاپېریال رامنځته کړي چي د روحاني پرمختیا په لار کي خنډونه لږ او د هڅوني مواقع زیات وي. دغه لامل دی چي اسلامي شریعت د انسان د مادي ژوند او روحي ژوند دواړو لپاره لارښووني کوي. پر دې سربېره د هغه د ژوندانه د دواړو انفرادي او ټولنیزو اړخونو لپاره هم لارښوونه کوي.

لکه چي ما دمخه هم وویل دغه تصور پر هغه پاخه یقین باندي ټینګ پاته کېدلای سي چي په انسان کي روح موجوده ده او د هغه په ژوند کي یو روحاني مقصد لګیا دی کار کوي. خو د اروپا او امریکا د اوسنۍ نظریې سره سم د روح په نامه کوم شی نسته. البته هغوی په ځینو صورتونو کي روح په زړه نا زړه توګه مني. د دې نظریې سره سم په عمل کي د انساني ژوند لپاره کومه موخه نه پاته کېږي. له دې

امله لوېدیځ د ټولو تر عقل لوړو (ماورای عقل) اټکلونو او تصوراتو څخه ځان ګوښه کړی او شلوون یې ور سره کړی دی.

موږ چي کوم څه ته «مذهبي چلند» وایو د هغه بنسټ زموږ دا ازلي یقین دی چي یو جامع آسماني اخلاقي قانون موجود دی او انسانان باید د دغه قانون پابند وي. خو نوی لوېدیز تهذیب دا نه مني چي انسان له اقتصادي، ټولنیزو او ملي ګټو پرته کوم بل معبود ولري. د لوېدیځ رشتیانی معبود له روحاني ډوله نه دی، بلکي د دوی معبود عیش او چړچې دي، او د دوی د ژوندانه حقیقي فلسفه د ځواکمنۍ لپاره د ځواک تر لاسه کول دي. دغه نظریې دوی ته له لرغوني رومي تهذیب څخه په میراث پاته دي.

رومي تهذیب تر یوه حده د لوېدیځ د ماده پالني د فلسفي بنسټ ګڼل هغو وګړو ته اریانوونکی ښکاري چي د لرغوني رومي سلطنت او پخواني اسلامي سلطنت د موازنې خبري یې په پلاوو پلا وو اورېدلي وي. اوس دا پوښتنه کیږي چي بیا نو د اسلام او لوېدیځ په بنیادي تصوراتو کي دونه توپیر له کومه سو؟ ځکه په پخواکي د دوی سیاسي کړنلار یو ډول وه. سم جواب دادی چي دا دواړه یو ډول نه وه. د نوي لوېدیز توکم ذهنونه له دې ډول تاریخي غلطیو او سطحي نیمه معلوماتو څخه ډک سوي دي. اصلي خبره داده چي د اسلامي او رومي سلطنتونو په منځ کي بې له دې چي پر زیاتو پراخو سیمو یې چي مختلف ولسونه پکښي اوسېدل واکمني درلوده، بل هیڅ شی نه دی مشترک. خو دغو دواړو واکمنیو دوه بېل بېل محرکه ځواکونه درلوده او تاریخي موخي یې بېلي بېلي وې. که له پرمختیایي پلوه ورته وګورو هم د دواړو تر منځ ستر توپیر لیده سي. د رومي سلطنت

د جغرافيوي بشپړتيا لپاره او سياسي بلوغ ته تر رسېدو پوري زر کاله ولګېدل. خو اسلامي سلطنت په اتيا کاله کي خپلي ځوانۍ ته ورسېد. که د دې دواړو زوال ته وکتل سي نو توپير به نور هم څرګند سي. د رومي سلطنت زوال چي هون او ګوت[1] قومونو وروستي مهرونه پر ولګول، صرف په يوه پېړۍ کي بشپړ سو. دا زوال دونه مکمل وو چي له ادب او ودانيو پرته د هغه نوم او نښان هم نه سو پاته. بېزنتيني سلطنت به چي په عامه توګه د روم وارث ګڼل کيږي، د رومي سلطنت پر ځينو سيمو باندي واکمن وو خو د هغه ټولنيزو او سياسي ادارو د رومي سلطنت له تصوراتو سره هيڅ اړيکه نه درلوده[2]. د دې بر عکس د اسلامي سلطنت چي خلافت ورته ويل کيږي په اوږده پېر کي بېله شکه ځيني بدلونونه پېښ سول او بېلي بېلي کورنۍ واک ته ورسېدلې خو د هغه په دولتي اداره کي بدلون رامنځته نه سو. اما تر کومه ځايه چي په بهرنيو بريدونو اړه لري

---

١- هون له منځنی آسيا (مغولستان) څخه راوتلې يوه کډه‌په شا توکميزه ډله وه چي د ايټيلا (٥٤ ـ ٤٣٣ع.) په مشري يې پر اروپا ور ودانګل. او ګوت پخوانۍ جرمنۍ قبيلې وې چي تر دريمي عېسوي پېړۍ وروسته يې په اټلي، سهيلي فرانسه او اسپانيه کي واکمنۍ ټينګي کړې. په اسپانيه (اندلس) کي له وزيګوت واکمنو څخه د واک تر لاسه کوونکي پاچا راډرک ته طارق بن زياد ماته ورکړه او د اسلامي اندلس بنسټ يې کېښېښود.

٢- په ٣٩٥ع. کال رومي سلطنت پر دوو برخو ووېشل سو. دلوېديز سلطنت (٤٧٦ ـ ٣٩٥ع.) پلازمېنه روم وه. خو د ختيز رومي سلطنت (١٤٥٣ ـ ٣٩٥ع.) پلازمېنه قسطنطنيه وه. د دغه ښار پخوانی نوم بېزنتيم ته په نسبت ورکولو سره عموماً بېزنتيني سلطنت بلل کيږي. کوم چي په قرآن کريم کي الروم ورته ويل سوي دي.

مغولو هم چې د رومي سلطنت تر له منځه وړونکو هون او ګوت قومونو زيات زلند او ويني بهوونکي وه د خلافت ټولنيز چوکاټ له منځه يونه وړلای سو او نه يې د هغه سياسي وجود پای ته ورسولای سو. البته دا يقيني ده چې دغه بريد په وروسته مهال کې د دغه سلطنت د اقتصادي او علمي زوال لامل سو. د دې برعکس رومي سلطنت په يوه پيړۍ کې پوپنا سو، خو خلافت ورو ورو له منځه ولاړ. پر دې له منځه تلو باندي زرکاله ولګېدل تر دې چې د عثماني خلافت د پای ته رسېدو سره يوځای د هغه سياسي اډانه پای ته ورسېده او تر دې وروسته يې د ټولنيزي اډانې د تباهۍ آثار تر سترګو سوه کوم چې موږ يې نن مشاهده کوو.

له دې څخه دې پايلي اخيستلو ته اړ کيږو چې د اسلامي نړۍ د نننی ځواک او د هغه ټولنيز چارچوب دونه پياوړي وه چې په انساني تاريخ کې يې بېلګه نه موندل کيږي. له چيني تهذيب سره هم د دې پرتله نه کيږي. کوم چې تر څو پېړيو يې د تېريو په وړاندي د ټينګار او مقاومت وړتيا وښوول. چين د يوې لويي وچي پر سر پروت دی. هغه ته تر نيمي پېړۍ دمخه، يعني د جاپان تر رامنځته کېدو پوري د کوم مخالف ځواک لاس نه وو رسېدلی.

د چنګيز خان او د هغه د ځای ناستو مغولو په زمانه کي جګړې د چيني سلطنت پر څنډو رواني وې. خو اسلامي سلطنت چې تر درو لويو وچو غځېدلی وو، هر وخت د ډېرو ځواکمنو دښمنانو سره مخامخ پاته سوی وو. د منځني ختيځ او نږدې ختيځ اورشو د توکميزو او فرهنګي ټکرونو ډګر پاته سوی، خو اسلامي ټولنيزي اداري هيڅ تسخير نه دی زغملی. البته په اوس کي يې نقصان ور

رسولی دی. موږ اړتیا نه لرو چي دې اریانوونکي پېښي ته د جواز په لټه کي سو. قرآني تعلیماتو د یوې ستري ټولنیزي ادارې لپاره پیاوړي بنسټونه رامنځته کړي او حضرت محمد ﷺ د هغه ګردچاپېره بنیان مرصوص (پیاوړی بنیاد او دېوال) راګرځولی دی. رومي سلطنت دغه ډول کوم روحاني عنصر نه درلود، ځکه نو داسي ژر له منځه ولاړ.

د دغو دوو پخوانیو سلطنتونو په منځ کي یو بل توپیر هم سته. په اسلامي سلطنت کي کوم معتبر او ځانګړی قوم نه وو او د واک ترلاسه کولو موخه د دین ترویج او خپراوی وو. دغه ډېر ستر مقصد د دغه دین راوړونکي او د هغه د رپي اوچتوونکو څرګند کړی وو. خو د رومي سلطنت موخه پر نورو هیوادونو باندي ولکه ټینګول او د خپل هیواد د ګټي لپاره د نورو ولسونو زبېښل وه. په رومي سلطنت کي د ځانګړي، معتبر قوم د وګړو د عیش او عشرت لپاره د رومیانو په نزد هر ډول ستر ظلم او بې انصافي هم روا وه. رومي نیاو او عدالت چي ډېر نوم لري هغه یوازي د رومیانو لپاره وو. څرګنده ده چي د ژوند او فرهنګ دغه ډول رویه یوازي پر مادي تصوراتو ولاړه وي. دغي ماده پالني په یقین سره علمي او د ښکلاپېژندني ذوق ښه کړی وو، خو په هغو کي د روحاني ارزښتونو څه دخل نه وو. حقیقت دادی چي رومیانو ته د مذهب څه پته نه وه. د دوی دودیز آلهه د یوناني آلهو بد شکله نقل وو چي په پټه خوله یې د رومیانو په ټولنیزو دودونو کي ځای نیولی وو. په هر ډول چي وو دغو آلهو په «رشتیاني» ژوندانه کي د مداخلې اجازه نه درلوده، او نه دا هیله ځني

کېده چې پر انسانانو باندې اخلاقي قوانین نافذ کړي او لارښوونه ورته وکړي.

دا هغه خاوره ده چې نوی لوېدیز تهذیب ځنې زېږېدلی دی. بې شکه چې دغه تهذیب د خپل پرمختګ په پېر کې بېلې بېلې اغېزې ومنلې او د رومیانو په فرهنګي میراث کې یې له زیاتو لارو بدلونونه راوستل. خو دا حقیقت پر خپل ځای پاته دی چې له لوېدیزو اخلاقیاتو څخه چې نن کوم څه سم ګڼل کېږي هغه په مستقیمه توګه د رومي تهذیب اغېز دی. د لرغوني روم علمي او ټولنیز چاپېریال مازې پر ماده پالنه او د مذهب سره پر دښمنۍ ولاړ وو. دغه ماحول اوس هم په نوي لوېدیځ کې شتون لري. که څه هم په دې هکله په ډاګه اعلان نه کېږي. نوی لوېدیځ دآسماني مذهب په خلاف کوم ثبوت نه پرېږدي او د داسې ثبوت اړتیا هم نه ویني. نوی لوېدیز فکر که څه هم مذهب د ټولنیز دود غوندې زغمي خو له عملي ژوند سره د اخلاقیاتو اړیکه روا نه بولي. لوېدیز تهذیب که څه هم په څرګنده له «اله» څخه انکار نه کوي خو د دوی په موجوده ذهني او عقلي چاپېریال کې د «اله» ځای نسته او نه دې تهذیب ته د «اله» له منلو څخه څه ګټه رسېږي. انسان ژوند په ټولیزه توګه تر ولکه لاندې نه سي راوستلای، او لوېدیز تهذیب د انسان له عقلي ستونزي څخه د ښېګڼې یو اړخ موندلی دی ځکه نو په نوي لوېدیځ کې یوازې هغه تصور عملي اهمیت لري چې د تجربوي ساینس په کړۍ کې راځي. یا د هغه تصور ارزښت مني چې د انسان ټولنیزې اړیکې په عملي توګه تر اغېزې لاندې راولي. نو څنګه چې په لومړیو کتو کې په دې دواړو صورتونو کې د «اله» د وجود سوال نه پیدا کېږي له دې امله په

اصولي توګه لوېدیز ذهن له عملي ژوند څخه د «اله» ایستلو ته چمتو دی. پوښتنه داده چي دغه چلند د عېسویت له اند دود سره څنګه سمون خوري. آیا عېسویت چي د لوېدیز تهذیب روحاني سرچینه بلل کیږي پر آسماني اخلاقیاتو نه دی ولاړ؟ رشتیا داده چي دغه دین پر آسماني اخلاقیاتو ولاړ دی، نو بیا تر دې لویه تېروتنه بله نه سي کېدای چي وویل سي مغربي تهذیب له عېسویت څخه زېږېدلی دی. لکه چي وویل سول د نوی غرب عقلي بنیاد د لرغوني روم پر دې تصور ولاړ دی چي ژوند صرف مادي دی، او د کومي آسماني لارښووني سره څه اړېکه نه لري. دا خبره داسي هم ویل کېدای سي: «څنګه چي موږ په یقین سره نه پوهیږو چي د انساني ژوندانه پیل څنګه وو او تر مړیني وروسته به څه کیږي. له ساینسي تجربو او ریاضیاتو څخه هم په دې هکله معلومات نه کیږي. ځکه نو ښه داده چي موږ خپل ټول ځواکونه پر مادي او عقلي پرمختیا ولګوو او په دې هکله آسماني اخلاقیاتو یا اخلاقي مفروضو ته موقع ورنه کړو چي زموږ د لاري خنډ سي، ځکه دغه اخلاقیات کوم ساینسي ثبوت نه لري». په دې کي څه شک نسته چي دغه عذر چي د نوي لوېدیز تهذیب اساس دی عېسویت، اسلام یا کوم بل مذهب ته د منلو وړ نه دی. ځکه چي دا په خپل اصل کي لامذهبیت او بې دیني ده. له دې امله دا د خندا خبر ده چي وویل سي د نوي لوېدیز تهذیب عملي بریالیتوبونه د عېسوي تعلیماتو ثمره ده. عېسویت په ساینس او مادي پرمختیا کي هیڅ داسي برخه نه ده لرلې چي اوسنی تهذیب ځني بشپړ سوی وي.

حقيقت دادی چې دغه بریالیتوبونه د عیسوي کلیسا او د هغې د ژوندانه د نظریې په خلاف د اروپا د پیړیو پیړیو جګړې په پایله کې ترلاسه سوي دي.

تر څو پیړیو پوري د اروپا روح د مذهبي نظام تر پښو لاندي مروړل کېدل. په دې نظام کي انساني فطرت ته په سپکه سترګه کتل کېدل. په عیسویت کي رهبانیت (ترک دنیا)، د باطلو په وړاندي سر ټیټول، پر یوه بارخو د چپلاخي په ورکولو سره بل بارخو ورته وړاندي کول، جنسي اړیکي ممنوعه ونه غوندي ګڼل، دغه ټول تصورات له جنت څخه د آدم او حوا (علیهما السلام) د ایستلو سره تړلي دي. یعني د پلار د لومړنۍ ګناه سره او د حضرت عیسیعليه السلام دار ته د پورته کولو سره. له دې ټولو خبرو څخه څرګندیږي چي د دې مذهب له مخي له انساني ژوند څخه تعبیر مثبت نه دی. بلکي هغه هرومرو بد ګڼي. چي له دې امله د روحاني پرمختیا لپاره ډېرو سختو ریاضتونو ته اړتیا ده. څرګنده ده چي دغه عقیده د مادي علومو او دنیوي ژوندانه د ښه کولو د کوښښونو خنډ کیږي. بې شکه چي تر اوږدومهالونو پوري د اروپا عقل او د ژوند پوهي د دغه تیاره تصور د مرییتوب کړۍ غاړي ته اچولې وه. په منځنیو پیړیو کي کلیسا د هر څه واک اختیار درلود او اروپا په ساینسي څېړنو کي څه نقش نه درلود. دغه راز د اروپا اړیکي د روم او یونان د فلسفي اندونو سره چي اروپایي فرهنګ له هغو څخه زیږېدلی وو هم شلېدلي وې. کلیسا د عقل نیلی په زنځیرونو تړلی وو، چي د دې په خلاف انساني عقل په پلاوو پلاوو بغاوت کړی، خو کلیسا هغه سخت وټکاوه او خپل یو لټ او بې کاره تابع یې کړ. د منځنیو پیړیو

تاریخ د اروپا د عقل او پوهې او د کلیسا تر منځ له ډول ډول شخړو څخه ډک دی.

د عیسوي کلیسا له فکري زنځیرونو څخه د اروپا پوهې ته د نوي رغښت (رنسانس یا نشاة ثانیه) پر مهال آزادي په برخه سوه. د دې لامل تر ډېره حده د عربو د ثقافت او د هغو د اندونو اغېزې وې. چې تر څو پېړیو پر لوېدیځ پرتې وې.

د لرغوني یونان او تر هغه وروسته د یوناني فرهنګ غوره اړخونه عربو غوره کړي وه او د لومړني اسلامي سلطنت تر ټینګښت وروسته یې د پېړیو په اوږدو کې هغه ته پرمختیا ورکړه. زه دا ادعا نه سم کولای چې د یوناني اندونو له منلو څخه عربو او مسلمانانو ته ګټه ورسېده. زما په نزد له دې څخه هغو ته کومه ګټه نه ده رسېدلې. که څه هم د ارسطو او نوو افلاطوني تصوراتو له بیا ژوندي کولو او اسلامي افکارو او قانون ته د هغو له ورپېژندلو څخه څه ستونزې پېښې سوې، خو دې چارې دا ګټه وکړه چې اروپایي افکاروته یې ستر خوځښت ورپه برخه کړ. په منځنیو پېړیو کې په اروپا کې حاصل ورکوونکي ځواکونه نه استعمالېدل، په دې پېر کې علوم جامد پاته وه توهم پالنه دود وه. ټولنیز ژوند دونه بابېز وو چې نن یې تصور هم نه سي کېدای. په دغه پړاو کې د اسلامي نړۍ فرهنګي یرغل پیل سو. تر ټولو دمخه په ختیځ کې د صلیبیانو د جګړه ییزو فعالیتونو اغېزو، په لوېدیځ کې د مسلماني اسپانیې او سیسلي پرتمینو علمي بریالیتوبونو او وروسته د نژدې ختیځ سره د جینیوا او وینز د جمهوریتونو مخ پر ودې سوداګریزو اړیکو د اروپایي تهذیب تړلې ورونه وروټکول. د اروپایي پوهانو او مفکرینو په وړاندې یو بل

داسي تهذيب هم را څرګند سو چي هغوی يې هک پک کړه. دغه تهذيب ډېر پياوړی، د پرمختګ پر لار روان، له زوړه ډک ژوند څخه برخمن او له فرهنګي شتمنۍ څخه مالامال وو. خو اروپا ډېر دمخه ورک کړی او هېر کړی وو. عربو چي څه وکړه هغه دا وه چي لرغوني يوناني علوم يې ژوندي کړل، خپله نوې ساينسي نړۍ يې ومونډل، د څېړني او فلسفې نوي لاري يې پيدا کړې او دا هر څه يې له بېلو بېلو لارو لوېديزي نړۍ ته ولېږدول. دا به مبالغه نه وي چي وويل سي چي موږ چي په کومه ساينسي نړۍ کي اوسېږو هغې په عېسوي اروپا کي سترګي نه دي پرانيستي، بلکي هغه د دمشق، بغداد، قاهرې، قرطبې، نيشاپور، او سمرقند په اسلامي مراکزو کي پيدا سوي دي.

اسلامي تهذيب پر اروپا باندي ډېري ستري اغېزې وښندلې. له دغه تهذيب څخه د لوېديځ پر آسمانونو باندي داسي نوي رڼاوي څرګندي سوې چي په لوېديځ کي يې نوې روح پو کړه او د پرمختګ ولولې يې پکښي پيدا کړې. دغه لامل دی چي اروپايي مورخين دغي چاري ته د پوهنو بيا ژوندي کول يا بيا رغښت (Renaissance) يعني نوی ژوند وايي.

له اسلامي ثقافت څخه څو ځواکمني او پياوړي څپې مونده سوې چي د اروپا ډېروښو دماغونو ته يې د عېسوي کليسا د پوپانا کوونکي ولکې د غلېچو زنځيرونو د ماتولو لپاره نوی ځواک مونده کړ. دغه شځړي په بېلو بېلو اروپايي هيوادونو کي په يوه وخت کي د سمونيزو غورځنګونو په بڼه پيل سوې او موخه ځني داوه چي عېسوی اند دود ته د ژوندانه د نوو غوښتنو سره سمون ورکړي. دغه تحريکونه ډېر غښتلي وه. که هغو په صحيح معناوو روحاني

بریالیتوب ترلاسه کړی وای، نو دا به په ټوله اروپا کي د ساینس او مذهبي فکر په منځ کي د مفاهمې د پیدا کولو لامل سوي وای. خو د منځنیو پېړیو کلیسا چي څونه تاوان رسولی وو، دونه ژور او هراړخیز وو چي دغه تاوان له یوازي سمون څخه نه پوره کېدی. پر دې سر بېره په دغو تحریکونو کي ډېر ژر د ګټي پالونکو ډلو په منځ کي سیاسي کشمکش پیل سو. د دې پر ځای چي له دغو تحریکونو څخه عېسویت اصلاح سي، ډېر ژر دفاعي موقف غوره کولو ته اړ سول او ورو ورو د هغو رویه معذرت غوښتونکې سوه. کلیسا کاتولیکه وه که پروټیسټنټ خپلي شعبده بازۍ، خپل هغه عقاید چي هیڅ د پام وړ نه وه، له دنیا څخه کرکه او د مظلومو عوامو پر اوږو باندي د سپرو واک ترلاسه کوونکو بې ځایه ملاتړ پرې نه ښود، بلکي په خپلو ضعیفو دلایلو سره یې د دغو ناوړو چارو د کالخوایی او وکالت کوښښ هم وکړ. دا د څه اریانتیا خبره نه ده چي د لسیزو او پېړیو په تېرېدو سره په اروپا کي د مذهبي افکارو ولکه ورځ تر بلي ضعیفه کېده تر دې چي په اتلسمه پېړۍ کي د فرانسې د اوښتون (انقلاب) سېلاب د کلیسا لوړتیا له ځان سره یووړه. د دې سره سم د کلیسا ټولنیز او سیاسي تصورات هم د اروپا په بېلابېلو هیوادونو کي د اوښتون شومه سول.

دغه مهال یو ځل بیا څرګنده سوه چي د منځنیو پېړیو د کلامي دینیاتو له بې سېکو لاسونو څخه په ژغورني سره یو نوی راژوندی سوی تهذیب کوم چي اروپا یې انتظار درلود راټو کېدونکی دی. حقیقت دادی چي د اتلسمي پېړۍ په وروستیو او د نولسمي پېړۍ په لومړیو کي په اروپا کي د فلسفې، هنر، ادب او ساینس په څانګو کي

ځيني غوره او له روحي پلوه پياوړي شخصيتونه پيدا سوه، خو د روحاني ژوندانه رشتياني مذهبي تصور يوازي په څو تنو پوري محدود پاته سو. د اروپا عام وګړي چي ډېر وختونه د مذهبي عقايدو تر سيوري لاندي اوسېدلي وه او د فطري څېړنو سره يې اړيکي شلېدلي وې، تر ژغورني وروسته هم د مذهب د سم تصور سره بلد نه سول.

په اروپا کي د مذهب د راژوندي کېدو په لار کي د خنډ رامنځته کېدو تر ټولو مهم عقلي عنصر دا تصور وو چي حضرت عيسى عليه السلام د «خدای» زوی دی. د فلسفي ذهنيت درلودونکو عېسويانو هيڅ کله هم له دغه تصور څخه د هغه لغوي معنا وانه خيسته. دوی داسي ګڼل چي د لوی څښتن رحمت په انساني بڼه را څرګند سوی دی، خو له بده مرغه هر څوک فلسفي ذهن نه لري. له دې امله د عېسويانو ستري ډلي د «زوی» معنا کټ مټ زوی و بلل که څه هم تل دې ته صوفيانه رنګ هم ورکول کېدی او ويل کېدل چي د عيسى عليه السلام د «خدای» د زوی بللو معنا خپله «خدای» دی، چي د سپيني ږيري درلودونکي يوه مهربان بوډا سړي بڼه يې غوره کړې وه. د دغه سړي په ډېر هنري مهارت سره جوړ سوي هغه انځورونه موجود دي کوم چي د اروپا پر بې شعوره ذهن باندي نقش سوي دي. په کومه زمانه کي چي په اروپا کي عېسوي عقيده دود وه هغه مهال د دغه عجيب او غريب تصور مقابلې ته د وردانګلو هيڅ امکان نه وو. خو يو ځل چي د منځنيو پېړيو عقلي زنځيرونه مات سول نو غور او فکر کوونکي اروپايي انسان په انساني بڼه مځکي ته د «خدای» د راتلو تصور ونه منلای سو. له بله لوري «له بشريت څخه تر خدايی» پوري

د خدای عقیده د عام منلي تصور ښکاره برخه ګرځېدلې وه. د کلیسا په تعلیماتو کي چي د «خدای» کوم تصور وړاندي سوی دی، نوی اروپايي فکر له هغه څخه منکر دی. څنګه چي دغه نوی فکر د «خدای» له کوم بل تصور څخه نه وو خبر، ځکه يې نو «خدای» ګردسره ونه مانه. او د دې سره سم دغه فکر له مذهبه هم منکر سو.

د لوېديزيانو سره صنعتي او نورو سترو مادي پرمختياوو نوي دلچسپۍ پيدا کړې چي له امله يې په لوېديځ کي مذهبي تشه رامنځته سوه. په دې تشه کي لوېديز تهذيب خطرناکه لار واخيسته. دا د هر هغه چا په اند ويرنه ده چي مذهب د انساني ژوندانه ستر حقيقت بولي. د عېسوي تثليث له اسارت څخه تر ژغورني وروسته د اروپايي ذهن ټولي پولي له منځه ولاړې او ورو ورو د انسان روحاني ژوند د مخالفت په ډنډ لاهو سو. د روحاني واک د دعوه کوونکو ځواکونو پر لاشعور چي کومه بېره مسلطه سوې وه د هغې د عکس العمل له امله اروپا په اصولي او عملي توګه د مذهب د مخالفو ځواکونو د ننګي او ملاتړ ټاټوبی وګرځېد. په دې توګه اروپا د خپل اصلي رومي ميراث لور ته ورو ګرځېده.

هيچا ته د دې موقف په هکله د ملامتيا ګوته نه سي نيول کېدای چي دغه چاري چي لوېديځ يې د پرتمينو برياليتوبونو د ترلاسه کولو قابل کړ، پر نورو مذاهبو باندي د عېسوي عقيدې امکاني لوړوالی نه وو. ځکه که د لوېديځ عقلي ځواکونو د عېسوي کليسا د بنسټيزو اصولو پر خلاف تاريخي هلي ځلي نه وای کړي، د دې برياليتوبونو تصور هم نه سو کېدای. د ژوند په هکله د اروپا اوسنی مادي پال

تصور د عېسویت د «روحانیت» په خلاف یوه غچ اخیستنه ده. ځکه عېسوي روحانیت د ژوند د فطري واقعیتونو سره څه سر نه خوري.

دا زما کار نه دی چې د عېسویت او نوي لوېدیځ د اړیکو عمق ته ورننوزم او جاج یې واخلم. ما په دې هکله چې ولې نوی لوېدیز تهذیب په خپلو تصوراتو او لار او لیکه کې په بشپړه توګه د مذهب خلاف دی. یوازې د درو غالباً بنسټیزو لاملونو د په ګوته کولو کوښښ کړی دی. دغه درې لاملونه دادي:

لومړی: نوی لوېدیز تهذیب د هغه رومي تهذیب میراث دی. کوم چې رویه یې د انساني ژوند او د هغه د فطري ارزښتونو په اړه ګردسره د ماده پالني پر بنسټ وه.

دوهم: د عېسویت په خلاف د انساني فطرت بغاوت دی، ځکه عېسویت د انسان له فطري غوښتنو څخه کرکه کوي او د هغو د ترلاسه کولو لپاره د روا هلو ځلو مخه نیسي. (په دې موخه عېسویت د سیاسي او اقتصادي مشرانو سره دوديز جوړجاړی لری او د واک د څښتنانو د زبېښاک او ظالمانه چالاکیو ملاتړ کوي).

درېیم: دا تصور دی چې «خدای» د انسان په بڼه دنیا ته راغلی دی.

د مذهب په خلاف بغاوت بریالی سو. دغه بغاوت دونه کامیاب وو چې کلیسا او د عېسویت بېلابېلي فرقې اړي سوې چې د اروپا د ټولنیزو او ذهني حالاتو سره سم په خپلو اصولو کې ورو ورو بدلونونه راولي. د مذهب بنسټیزه دنده داده چې د خپلو منونکو پر ټولنیز ژوند باندي اغېز وښندي او هغه ته بدلون ورکړي، خو

عېسويت د سياست نقاب پر مخ راکش کړ او د نوو خبرو زغمل يې پيل کړل.

له دې امله د عوامو په اند د مذهب معنا يوازې ظاهري دودونـه او رواجونه پاته سول، لکه چې د لرغوني روم د آلهه وو سره هم دغسې کېدل چې پر تېولنه باندې يې د څه ډول اغېز ښندلو اجازه نه درلـوده. په دې کې شک نسته چې اوس هم په لوېديځ کې ډېر داسې وګـړي سته چې د سم مذهبي فکر څښتنان دي. دغـه وګـړي د دې خبـرې د ثابتولوبشپړ کوښښ کوي چې د دوی عقايد د دوی د تهـذيب د روح سره سم دي، خو دغسې خلک د استثنا حيثيت لري.

د اروپـا او امريکـا يـو عـام وګـړی جمهـوري غوښـتونکی وي کـه فاشيست، پانګوال وي که کمونيست، کارګر وي کـه عـالم صـرف يـو مثبت «مذهب» يعني مادي پرمختګ مني. اوس دا عقيده ګڼل سـوې ده چې د انسان نصب العين (موخه) ژوند هر څه زيات آسانه کول او هوسا کول دي. کوم چې «له طبيعت څخه د آزادۍ» نوم ورکړه سوی دی. د دې مـذهب عبادتځايونـه لـويي لـويي کارخـانې، سـينماوې، کېمياوي لابراتوارونه، نڅـا ځايونـه او د اوبـو د برېښـنا تاسيسـات او داسي نور دي او د دوی پادريان موسيقي ږغوونکي، انجنيران، فلمي سـتوري، صـنعتکاران او لـوی لـوی لوبغـاړي دي. د واک او خونـد د ترلاسه کولو د دې شديد ي غوښتني لازمي پايله دا را وتلې ده چې يو له بله سيالي ډلي هم را منځته سوي دي چې په بشپړه توګه پـه وسـلو سمبالي دي او دې ته څارو دي چې کومه ډله د دوی د ګټو خنـډ سـي

سره را وغورځي او یو بل پوپنا کړي[1]. له فرهنګي پلوه د دې په نتیجه کې یو داسې انسان رامنځته سو چې اخلاقیات یې یوازې تر عملي ګټو محدود پاته سوي دي او د خیر او شر ډېر لوړ معیار یې مادي بریالیتوب دی.

دغه مهال چې د لوېدیځ په ټولنیز ژوند کې ستر بدلونونه رامنځته کېږي. په هغو کې داسې اخلاقیات ریښه ځغلوي چې څه چې د ټولو په ګټه دي هغه درست دي. پر دې بنسټ هغو ارزښتونو ته چې په سیخه توګه د ټولني پر مادي پرمختګ اغېز ښندي، لکه فني مهارت، وطن پالني او ولس پالني ته له مبالغې څخه په ډکه توګه وده ورکول کېږي او هڅېږي. خو هغه ارزښتونه چې بنسټ یې خالص اخلاق وه، لکه د اولاد مینه، یا د مېړه او مېرمني تر منځ وفا او پایښتې مینه په خورا چټکۍ سره خپل اهمیت له لاسه ورکوي، ځکه له دې وو څخه ټولني ته کومه مادي ګټه نه رسېږي. په یوه پېر (مهال) کې د یوې ډلي یا قبیلې د ښځني لپاره ټینګو کورنیو اړیکو ته پرېکړوني ارزښت ورکول کېدی. اوس د دې ځای ټولنیزو ادارو نیولی دی کومي چې بېلابیلي څانګې لري او ټولنه په بنسټیزه توګه فني ټولنه جوړه سوې ده او په چټکي سره پر ماشیني کرښو برابرېږي. په دې ټولنه کې د پلار سره د زوی چلند کوم ځانګړی ټولنیز اهمیت نه لري. تر څو چې پلار او زوی د ټولني تر پېژندل سوو پولو تېری ونه کړي او په

١- د اروپا ښکېلاکي ځواکونه برتانیه او فرانسه په لومړۍ نړیواله جګړه (١٨ ـ ١٩١٤ع.) کې د جرمني سره ونښتل او د ١٩٣٠ په لسیزه کې نازي جرمني د خپلي تېري ماتي د غچ اخیستلو لپاره بیا خپل پوځي ځواک پیاوړی کړ چې په پایله کې یې دوهمه نړیواله جګړه (٤٥ ـ ١٩٣٩ع.) ونښته.

دې پولو کې اوسيږي، تر دې وخته ټولنه د دوی سره څه غرض نه لري. د دې پايله دا ده چې لوېديز پلار ورځ په ورځ پر خپل اولاد باندې واک اختيار له لاسه ورکوي او اولاد خپل پلار د پلارګلوينې له عزت او درناوي څخه بې برخي کوي. په دې توګه د پلار او اولاد دوديزې اړيکې ورو ورو له منځه ځي کومې چې د ماشينې ټولنې تصورات يې عملاً له کاره لوېدلې ګڼي، ځکه په دې ټولنه کې تمايل دې ته دی چې پر فرد باندې د فرد واک اختيار پای ته ورسيږي. د دې تصور منطقي پايله دا راوتلې ده چې د کورنۍ غړي له خپلو کورنيو مسؤوليتونو څخه آزاديږي.

د دې سره سم «پخواني» جنسي اخلاقيات هم ورو ورو مخ پر له منځه تلو دي. په نوي لوېديځ کې جنسي وفاداري او جنسي ضبط او پر يوه کس باندې يې انحصار پخوانۍ کيسه جوړيږي. ځکه چې د دې چارو بنسټ زياتره پر اخلاقياتو ولاړ وو او د ټولنې پر مادي پرمختګ باندې داخلاقي تصوراتو کوم محسوس او سمدستي اغېز نه لوېږي. دغه لامل دی چې جنسي ضبط په چټکۍ سره خپل اهميت له لاسه ورکوي. د هغو ځای داسې «نوي» اخلاقيات نيسي چې د هغو سره سم هر چاته پر خپل جسم باندې بشپړه آزادي او اختيار وي. په نژدې راتلونکې کې به د جنسي پابنديو بنسټ د نفوسو پر کنټرول او د ښه نسل پر پيدا کولو ولاړ وي. (دغه چاري دادی اوس موږ په عملي او بېروونکې بڼه وينو).

دغه مشاهده به لا نوره هم په زړه پوري سي چې د مذهب سره د دښمنۍ کوم پرمختګ چې موږ پورته ياد کړ په شوروي اتحاد کې هم وګورو چې هلته کوم چې له فرهنګي پلوه له نوري لوېديزې نړۍ

څخه نـه دی بېل څنګـه خپل منطقـي کمـال تـه ورسـېد. کمونیسـتي تجربه د مذهب، بلکي د روحاني تمایلاتو سره د نوي لوېدیز تهذیب د دښـمنۍ بشـپړتیا ده. د امپریالیسـتي لوېـدیځ او کمـونیزم تـر مـنځ مخالفت صرف پر دې دی چي د دغه ګډ نصب العین پر لـور د دوی د وړانـدي تـګ لاري چـاري بېلـي دي. پـه راتلـونکې کـي بـه د دغـو دوونظامونو داخلي ورته والـی هرڅـه زیـات څرګنـد سـي. د دوی ګـډ ورته والی دادی چي انسان دي د یوې اجتماعي مشینرۍ ـ کومـه چـي ټولنه ورته وایي ـ د خالصو مادي اړتیاوو په وړاندي لاس پر سر سي. ځکه نو په دې ټولنه کي انسان د اربې د پېچ حیثیت غوره کوي.

لـه دې څخـه صـرف یـوه پایلـه راوزي چـي دغـه ډول فرهنـګ پـر مذهبي ارزښتونو ولاړ ثقافت ته د هلاهل زهرو حیثیت لـري. زمـوږ بنسټیزه پوښتنه داده چي آیا د اسلامي فکر سره سره د لوېدیز تهذیب د غوښتنو سره سم ژوند کول امکان لري؟ جـواب نـه دی. پـه اسـلام کي د انسان لومړنی او بنسټیز مقصد د هغه اخلاقي ارتقا او پرمختیـا ده او اخلاقیات پر خالصه ماده پالونکې نظریه بانـدي لـوړوالی لـري. خو په نوي لوېدیز تهذیب کي دغه چاره بېخي سـرچپه ده. پـه لوېـدیز تهذیب کي مادي ګټي د انسان پر هر رنګه بوختیـاوو بانـدي لـوړوالی لري. دغه تهـذیب اخلاقیـات د ورکېـدو کنـدي تـه ورټېـل وهلـي دي. اوس اخلاقیاتو ته صرف هغه نظـري حیثیـت پاتـه دی چـي پـر ټولنـه باندي د یوې ذرې اغېز هم نه لري. په دغسي حالاتو کـي لـه اخلاقـو څخه خبري کول بېله منافقته بـل څـه نـه بلـل کېـږي. د نـوو لوېـدیزو مفکرینـو پـه نـزد معقولیـت دادی چـي دلوېـدیز تهـذیب پـر ټـولنیزو ارزښتونو باندي د خبرو پرمهال ان د آسماني اخلاقو یادونـه هـم ونـه

کړي، او چې مفکر د خپلو اخلاقي رويو څرګند تصور ونه لري د هغه په نزد د آسماني اخلاقياتو تصور غير عقلي يا غير ناطقه خبره ده. لکه کوم رياضي پوه چې ځيني غير ناطق اعداد استعمالوي، کوم چې د کوم حسي يا مادي شي نماينده ګي نه کوي، خو بيا هم هغه د انساني ذهن د جوړښت د حدودو له امله د تصور د خلا د ډکولو لپاره په کار وي.

له اخلاقو څخه د تېښتي چلند د مذهب سره سمون نه خوري. له دې امله د نوي لوېديز تهذيب اخلاقي بنسټ د اسلام سره سمون نه لري. د دې معنا دا نه ده چې مسلمان دې له لوېديځ څخه سائينسي پوهه نه ترلاسه کوي. خو د دې معنا دا هرو مرو ده چې فرهنګي اړيکي دي نه ورسره ساتي. په ډېرو څرګندو الفاظو ويل کېداى سي چې د لوېديز د تهذيب د روح، د ژوندانه د طرز او د ټولنيزو ادارو نقلول تر هغو امکان نه لري چې موږ پر اسلامي نظريه ښه درونـد وارى نه وي کړى.

## د صليبي جګړو سيورى

مسلمانان ولي بايد د لوېديز تهذيب له نقلولو ډډه وکړي؟ د دې يو لامل داد‌ى چې د دواړو تهذيبونو په منځ کي کوم روحاني مطابقت نسته. پر دې سربېره له بېلو بېلو تاريخي تجربو څخه هم له اسلام سره د لوېديځ دښمني څرګنديږي.

دغه دښمني تر يوه بريده اروپا ته په ميراث رسېدلې ده. يونانيانو او روميانو يوازي خپل ځانونه با فرهنګه بلل او نورو ټولو هيوادونو، په تېره د روم سمندرګي د سهيلي او ختيزو سيمو پر اوسېدونکو يې

د بـر بـري (Barbarian) ټاپـه لګـول[1]. لـه دغـه مهالـه لوېـديزيان د توکوميز وياړ په نـاروغي اختـه دي، هغـو نسـلونو او ولسـونو تـه چـي اروپـايي نـه دي پـه بېخـي ډېـره سـپکه سـترګه ګـوري او دا د لوېـديز تهذيب ځانګړنه ګرځېدلې ده. د نورو مـذاهبو سـره د لوېـديز تهـذيب چلند د نه موافقت پر بنسټ ولاړ دی، خو د اسـلام پـه اړه يـې چلنـد پر داسـي شـديده کرکـه ولاړ دی چـي ډېـري ژوري ريښـې لـري. دغـه چلند يوازي پر عقلي بنسټونو نـه دی ولاړ، بلکـي جـذبات هـم لـوی دخل پکښي لري. لوېديځ ښايي بودايي او هندي فلسفه ونه مني، خو د دغو مذهبو نو په اړه متوازن او د پام وړ چلند غوره کوي، خـو چـي د اسلام خبره رامنځته سي نو د لوېديز ذهن توازن له منځه ولاړ سـي او د کرکي او تعصب جذبات په ګډ سي. له څو استثناوو پرته د اروپا ډېر ختيځپوهان پر اسلام بانـدي د ليکنـي پـر مهـال د داسـي پلـوی د جرم څرګندونه کوي چي هيڅ د پام او منلو وړ نه وي. د اسلام په اړه چي هغو کومي څېړني کړي دي، له هغو څخه معلومېږي چي د هغـو موخه پر اسلام باندي څېړنه نه ده، بلکي د هغو مقصـد داسـي ايسـي لکه چي اسلام يې په محکمه کي د قاضـيانو پـه وړانـدي درولـی وي. ان چي ځيني ختيځ پېژندونکي داسي څرګندېږي لکه د اسـلام د سـزا ورکولو لپاره چي د مدعي العموم (څارنوال) دنده پر مخ بيايي. نـور ختيځ پېژندونکي که څـه هـم د داسـي حکـومتي وکيـل دنـده پـر مـخ

---

١- اروپايانو او امريکايانو د شمالي افريقې د بر بر و (وروسته د بر بر مسلمانانو) سره د جګړو له امله او د تعصب له مخي هغو ته د وحشي (Barbarian) اصطلاح کاروي او د وحشت او بربريت لپاره يې د (Barbarianism) اصطلاح رامنځته کړې ده.

بيايي چي د مجرم په پلوي کار کوي، خو په زړه کي اسلام مجرم ګڼي او په زړه نازړه توګه د خپل موکل د سزا د کمولو وکالت کوي. زياتو ختيځ پېژندونکو چي د پايلو د ترلاسه کولو کومه طريقه غوره کړې ده، هغه د منځنيو پېړيو د ملحدينو په خلاف د کاتوليکي کليسا د عقايدو د پلټونکو بدنامو محکمو ياد تازه کوي. په بله وينا هغوی په پرانيستي ذهن د تاريخي حقايقو څېړني نه کوي، بلکي تقريباً په هره موضوع کي له مخکي څخه د اخيستلو سوو نتايجو په هکله څېړني پيلوي. د غه نتايج د اسلام پر ضد له تعصب څخه رامنځته سوي دي. دغه ختيځپوهان د دوی د زړه د خوښي پايلو په لاس راوړلو لپاره داسي شواهد لټوي چي د دوي په ښه ورسي. چيري چي داسي شواهد ترلاسه نه کړي نو ځيني شواهد د هغو له سياق او سباق څخه بېلوي او خپل کار ځني اخلي او دغه نتايج په غير ساينسي توګه او په بې ايمانۍ سره لاندي باندي کوي، د خپل مطلب نتيجه ځني اخلي. دوی د دې خبري پروا نه کوي چي په دې موضوع کي د بل اړخ يعني د مسلمانانو دريځ څه دی.

د کار د دې لاروچارو په مټ دوی له اسلام څخه يو عجيب او غريب انځور باسي. په لوېديځ کي چي د ختيځ په اړه کوم ادبيات خپرېږي په هغو کي د اسلام دغسي انځور ښکاري. د اسلام د مسخ کولو دغه له تعصبه ډک عمل يوازي په يوه هيواد پوري نه دی محدود، بلکي دا کار په انګلستان، جرمني، امريکا، روس، ايټاليا او هالينډ او د اروپا په نورو ټولو برخو کي کيږي. لنډه دا چي هر ځای لوېديزو ختيځپوهانو خپل پام د اسلام لور ته اړولی دی. د اسلام دغه مسخ سوی انځور يې کښلی دی. دوی له دې څخه د خپلي

ټېټتيا خوند اخلي. دوی ته چي هرځاى موقع پـه لاس ورغلـې ده د اسلام په خلاف ليکنو څخه يې خوند اخيستی دی. دغه ختيځپوهان کوم ځانګړی توکم نه لـري. دوی د خپـل فرهنګ او خپـل چاپېريـال استازي دي. له دې امله موږ ته په دې نتيجه اخيستلو کي څه تردد نه ښايي چي د اروپا او امريکا ذهن په ټوليزه توګه «د مذهب او ثقافـت په توګه د اسلام» پر ضد له تعصب څخه ډک دی[1].

د دغه ضديت يو بل لامل، بل پخوانی نقطۀ نظر هم دی کوم چي نړی يې پر «اروپايي» او «بربري» وېشلې وه. بل لامل چي لـه اسـلام سره په مستقيمه توګه اړه نيسي د تېرمهال لور ته له پام اړولو، په تېره د منځنيو پېړيو د تاريخ له مطالعه کولو څخه ځرګنديږي.

د متحدي اروپا او اسـلام تـرمنځ لـومړی سـتر ټکـر يعنـي صـليبي جګړې بالکل هغه مهال ونښتې چي اروپايي تهـذيب پيـل سـوی وو. دغه مهـال لا دغـه تهـذيب د کليسـا سـره پيوسـتون درلـود. د روم تـر زوال وروسته تر څو تيارو پېړيو پوري دغه تهـذيب لـه تيـارو څخـه د راوتلـو کوښـښ کـاوه. دغـه مهـال د دغـه تهـذيب پـر ادبيـاتو پسـرلی

١ـ له دې پلوه د لومړی نيمي پېړی په وروستی نيمايي کي د اروپا او امريکې د ختيځپوهانو په ليکنو او لهجه کي ځرګند ښه والی راغلی دی. که څه هم يوه معمولي لږکي تر اوسه هم خپل تعصبات پای ته نه دي رسولي، خو په ټوليزه توګه د اسلام او اسلامي نړی په اړه د لوېديځ په ليکنو کي ورو ورو ښه والی راځي او اسلامي فکر او اسلامي موخي ستايي او اوس چي ختيځپوهان سنجيده ليکني کوي په هغو کي د اسلام د شکل د مسخ کولو پخوانی شعوري يا لاشعوره تمايل پای ته رسېدلی دی. (ليکوال)

راروان وو. د ګوت، هـون او آوار[1] قومونـو د جګـړو او بريـدو نـو لـه امله چي پر ښکلو هنرونو کوم غفلت مسلط سـوى وو هغـه اوس لـه دغـه غفلتـه راويښـېدل. اروپـا دغـه مهـال د منځنيـو پېړيـو د لومړيـو مهالونو له ستونزمنو حالاتو څخه راوتلې وه او يو نوى فرهنګي شعور يې خپل کړى وو. په دغو ډېرو نازکو حالاتو کي صـليبيانو د اسـلامي نړۍ سره دښمنانه ټکر وکړ.

تر صليبي جګړو دمخه هم د مسلمانانو او اروپايـانو تـر مـنځ ټکـر راغلى وو، کله چي عربو پر سيسلي، اسپانيه او سهيلي فرانسـه بانـدي بريدونه کول. خو دغه بريدونه د اروپا لـه نقطـهٔ نظـره پـه اروپـا کـي د نوي ثقافتي شعور تر ويښـتيا دمخـه وه. دغـو جګـړو سـيمه ييـزه بڼـه درلوده او اوروپايان يې په بشپړه توګه په اهميت نـه سـوه پوهـېدلاى. وروسته صليبي جګړو د اسلام په اړه د اروپا دچلند په هکلـه پرېکـړه وکړه چي تر پېړيو پېړيو پر خپل حال پاته سوه. دغـه صـليبي جګـړې پرېکړوني وې. ځکه چي دا د اروپا د ژغـورني لپـاره وې. دا هغـه پېـر وو چي په اروپا کي د لومړي ځل لپاره فرهنګي ځـانګړنو پـه ټوکېـدو پيل کړى وو او تردغه مهاله لا د پرمختګ په پړاو کـي وې. کـوم څـه چي د افرادو په چارو کي تر سره کيږي هغه د ولسونو په چارو کي هم ترسره کيږي. هغه دا چي د ژغورني لپاره چي پر شعور او لاشعور څه اغېزي مرتسمي کيږي هغه د عمر ترپايه پاته کيږي. دغـه ډول اغېـزي دوني ژوري وي چي ايسته کېده يې هيڅ ممکن نـه وي. البتـه کېـداى

---

١- آوار په سهيل ختيزه اروپا کي يو جګړه مار قوم وو چي له شپږمي تر نهمي عېسوي پېړۍ پوري يې د تور سمندرګي څخه تر د ادرياټيک سمندرګي پوري خپل سلطنت جوړ کړى وو.

سي هغه په عقلي تجربو او غور او فکر راکمي کړای سي. دغه څه د صليبي جګړو په هکله هم وسوه. دغو جګړو د اروپا د عوامو پر روحياتو باندي ډېري ژوري او پايښتي اغېزي پرېښودې. د دغو جګړو په ذريعه چي دغه مهال د عوامو د زور او زوږ کوم سيلاب څپڅپاند سو نه دمخه راغلی وو او نه په وروسته کي راغی. د اروپا په ټوله لويه وچه کي جذباتي کيفيت رامنځته سو. چي له امله يې د دولتونو، ولسونو او عوامو تر منځ ټولي بېلوونکي پولي ړنګي سوې. دغه مهال اروپا په تاريخ کي د لومړي ځل لپاره د يووالي ځرګندونه وکړه چي هغه هم د اسلامي نړۍ پر ضد وه. بېله مبالغې ويل کېدای سي چي نوې اروپا د صليبي جګړو له روح څخه وزېږېده. تر دې دمخه اروپايان اينګلوسيکسن، جرمنيان، فرانسويان، نارمن، ایټالويان او ډنمارکيان وه، خو د صليبي جګړو په پېر کي د «عېسوي نړۍ» (Christendom) نوی تصور رامنځته سو. چي د ټولو اروپايي ولسونو ګډ مقصد جوړ سو. (دې په هيڅ صورت د «عېسويت» د مذهبي تصور سره سمون نه درلود). دغه ګډ مقصد د اسلام پر ضد د کرکي مقصد دی. چي «عېسوي نړۍ» ته يې د غره د ځراغ حيثيت غوره کړ.

د تاريخ تر ټولو ستره نادوده داده چي د لوېديزي نړۍ د لومړي ټولنيز شعور يا ذهني ويښتيا تر شا د کليسا لاس وو، خو تر دې وروسته چي اروپا څه برياليتوبونه ترلاسه کړل، هغه د کليسا له هري خبري څخه د بغاوت له امله وه.

دا عېسويت او اسلام دواړو ته ستره ويرنه سوه. کليسا ته ځکه ويرنه سوه چي هغې چي د اروپايانو پر ذهنونو باندي څه ولکه در

لوده له هغې څخه بې برخي سوه او اسلام ته له دې امله ویرنه سوه چي تر څو پېړیو پوري د صلیبي جګړو د بېلو بېلو بڼو سره مخامخ سو.

د پرهېزګارۍ دعوه کوونکو صلیبیانو په خپلو نیول سوو سیمو کي د تباهۍ او ورانۍ اورونه بل کړل او پر مسلمانانو باندي یې داسي ظلمونه وکړل چي د فلک سترګو به هیڅ نه وي لیدلي. بالاخره دغه سیمي مسلمانانو بیرته ونیولې، خو دغو صلیبیانو چي کوم نه بیانېدونکي ظلمونه وکړل په هغو کي یو ظلم داهم وو چي د پېړیو پېړیولپاره یې د دښمنۍ زهرجن زړې وکرل کوم چي تر اوسه یې لا د ختیځ او لوېدیځ په اړیکو کي زهر ګډ کړي دي. په داسي حال کي چي دې دښمنۍ هیڅ سبب نه درلود. که څه هم د اسلام او لوېدیځ په روحاني بنسټونو او ټولنیزو مقاصدوکي اختلافونه سته خو د دې سره سره دغه دواړه یو بل زغملای سي. دغه امکانات یوازي نظري نه، بلکي رشتیاني دي، ځکه د مسلمانانو لخوا تل د لورېیني او عزت او درناوي پر بنسټ د اړیکو د ټینګښت لپاره مخلصانه کوښښونه سوي دي. کله چي خلیفه هارون الرشید خپل سفیر (د فرانسې) ټولواکمن شارلیمان ته ولېږی نو د دې ترشا دغي هیلي کار کاوه. ځکه د هغه موخه په دوستي کولو سره د مادي ګټو ترلاسه کول نه وه. دغه مهال اروپا له ذهني پلوه دونه جامده وه چي په دې خبرو هیڅ پوه نه سوه. خو د مسلمانانو لخوا پر دې اقدام باندي د ناخوښۍ څرګندونه هم ونه سوه. تر دې وروسته صلیبیان نابېره راڅرګند سول او د اسلام او لوېدیځ اړیکي یې خړي پړي او مسمومي کړې. دا له دې امله نه وې چي صلیبیانو جګړه غوښته ځکه د ولسونو په منځ کي

ډېري جګړې سوي دي او بیا هېري سوي دي. ډېري دوستۍ په دښمنیو اوښتي دي، خو صلیبیانو چي کوم خباثت وکړ هغه یوازي پر وسله وال ټکر محدود نه وو، بلکي دا لومړی ذهني خباثت وو چي د اسلامي نړۍ پر ضد یې اروپایي ذهن مسموم کړ. اسلامي تعلیمات او نظریات د کلیساو په لارښوونه د اروپایي پوهانو لخوا په داسي حال کي چي د هغو په حقیقت پوهېدل په قصد او پوهه ګڼه وړ او ناسم وړاندي کېدل. د دغو صلیبي جګړو پر مهال په اروپایي ذهن کي د اسلام په اړه دغه د خندا ډک تصور رامنځته کړل سو چي اسلام (نعوذ بالله) د حیواني خواهشونو، وېني تویولو او ظاهري رسومو او دودونو مذهب دی. دغه دین د زړه او نظر د پاکۍ او سپېڅلتیا سره څه اړیکي نه لري. د اسلام دغه مسخ سوی انځور تر اوږدې مودې پوري پر اروپایي ذهن مسلط پاته سوی دی.

د کرکي تخم کرل سوی وو. ژر د صلیبي جګړو اغېزي د اروپا پر نورو ځایونو هم ولوېدې. دغو صلیبیانو د اسپانیي عیسویان وهڅول چي خپل هیواد «د کافرانو له کړاوه» وژغوري. د مسلماني اسپانیې پر ورانۍ، او توکم وژنه باندي پېړۍ پېړۍ وخت ولګېدی. د دغو اوږدو مذبوحانه تلاښونو له امله په اروپاکي د اسلام پر ضد جذبات نور هم زیات ژور او پیاوړي سول. په پایله کي په اسپانیه کي مسلمانان په منظمه او پرله پسې توګه، په بې رحمي سره ووژل سول. پر دې عام وژنه باندي په ټوله اروپا کي د خوشالیو جشنونه ونیول سول. که څه هم د دغو بې رحمیو اغېزي په ورروسته کي د یوه ستر او پرتمین ثقافت د پوپنا کېدو په بڼه راڅرګندي سوې او ځای یې د منځنیو پېړیو جهالت او ناپوهۍ ونیو. بیا د مسلماني اسپانیې د

وروستيو پاته شونو تر پوپنا کولو دمخه په ۱٤۹۲ع،کال مسيحي اسپانيې د غرناطې سلطنت د دوهم ځل لپاره فتح کړ. دا دريمه پېښه وه چي د لوېديزي نړۍ او اسلام اړيکي يې نوري هم خرابي کړې. د اروپا له نظره په بېزنتيني سلطنت کي اوس لا هم د يونان او روم څه ناڅه شان او شوکت پاته وو کوم چي د آسيا د «وحشيانو» (Barbarians) په وړاندي د اروپا پياوړې کلا بلل کېده. په ۱٤۵۳ع.کال د دغي واکمنۍ تر راپرځېدلو وروسته مسلمانانو ته د اروپا دروازه پرانيستل سوه. په را وروسته پېړيو کي د اسلام سره د اروپا دښمني يوازي په فرهنګي برخه کي پاته نه سوه، بلکي سياسي ارزښت يې هم پيدا کی چي له دې سره په دې دښمني کي نور زياتوب هم راغی.

په دغو حالاتو کي اروپا ته له جګړو څخه زياته ګټه ورسېده. رنسانس (بيا رغښت) رامنځته سو؛يعني په اروپا کي هنرونه او علوم بيا ژوندي سول. دغه علوم اروپا له اسلام او په ځانګړې توګه له عربو څخه په ډېره ستره کچه تر لاسه کړل. د دې لوی سبب د ختيځ او لوېديځ تر منځ د اړېکو رامنځته کېده وه. د فرهنګ په ډګر کي د اسلام په پرتله اروپا ته ډېره ګټه ورسېده. خو اروپا د ډېرمهالي اوږدې دښمنۍ له امله د مسلمانانو دغه همېشنی احسان ونه مانه. د دې په خلاف د مهالونو په تېرېدو سره دغه دښمني نوره هم زياته سوه او د اروپا د مزاج برخه وګرځېده. کله چي به کوم اروپايي د «مسلمان» لفظ واورېدی په زړه کي به يې د دښمنۍ ولولې وخوټېدلې. تر ټولو نادوده دا وه چي د فرهنګي بدلونونو سره سره دغه دښمني بيا هم پر خپل ځای پاته سوه. کله چي د سمون پېر راورسېد نو مذهب ټوله

اروپا وویشل او بېلابېلو ډلو د یوبل جګړې ته ور ودانګل. خو بیا هم دې ټولو د اسلام سره دښمني په ګډه پالل. یو مهال داسې راغی چې په اروپا کې پر مذهبي ولولو سړې اوبه توی سوې. خو دغه مهال هم له اسلام سره دښمني پر خپل حال پاته سوه. دا یو ښکاره حقیقت دی چې ستر فرانسوي مفکر والټیر په اتلسمه پېړۍ کې د عیسوي کلیسا له سختو دښمنانو څخه وو. او ورسره ورسره یې له اسلام او د هغه له پیغمبرﷺ څخه د لېونتوب تر پولې کرکه کول. تر څو لسیزو وروسته یو وخت داسې راغی چې د لوېدیځ فاضلو عالمانو د بهرنیو فرهنګونو له خواخوږۍ ډکه مطالعه پیل کړه، خو د اسلام سره دښمنۍ هغو ته اجازه ورنه کړه چې بې پلوه علمي څېړني وکړي. له بده مرغه تاریخ چې کوم واټن د اروپا او اسلامي نړۍ ترمنځ رامنځته کړی وو پر خپل حال پاته سو. له اسلام څخه کرکه د اروپایي فکر نه بېلېدونکې برخه وګرځېده. دا حقیقت دی چې د اوسني پېر لومړني ختیځ پېژندونکي کوم چې په اسلامي هیوادونو کې په کار بوخت وه عیسوي مشینري (د تبلیغي ادارو ډلي) وې. هغو اسلامي تعلیمات په مسخ سوې بڼه بیانول او موخه یې ځني د «کافرانو» په هکله د اروپایانو تعصب پیدا کول وه. خو اوس هم چې ختیځ علوم له مشینري اغېزو ژغورل سوي دي او اروپایي ذهن ګمراه کوونکی مذهبي جوش او زوږ نه لري، بیا هم د اسلام په اړه له تعصبه ډک ذهنیت موجود دی. دغه تعصب د اروپایانو د پلاړ او نیکه په خټه کې

اخښلی او د صليبي جګړو نتيجه ده کوم چي له پيل څخه يې پر اروپايي ذهن باندي ژوري اغېزي پرې ايښي دي[۱].

**د ژباړن څرګندوني:** د ليکوال پورتنی لمن ليک هغه مهال ليکل سوی چي پر افغانستان باندي د شوروي د يرغل له امله د لوېديځ او امريکا د وارخطايی او د سړې جګړې د اغېزو له امله امريکا او لوېديځ په مسلمانانو باندي د شوروي نظام د ماتولو په موخه د اسلام په اړه په منافقت سره نرم چلند غوره کړی وو، خو څنګه چي شوروي نظام دړي وړي سو، د امريکا او لوېديځ دغه نرمه رويه بيرته په دښمنانه چلند او له درواغو او ناروا تورونو په ډکو تبليغاتو

۱- بايد څرګنده سي چي دغه ليکنه په ۱۹۳۳ع،کال ليکل سوې وه. لکه چي ما په نهم لمبر لمن ليک کي يادونه کړې ده له څو لومړيو لسيزو څخه د ختيځ پوهانو په ادبياتو کي بدلون راغلی دی. خو ترکومه ځايه چي د اروپا او امريکا په عمومي ذهنيت پوري اړه لري، په هغه کي د اسلام او په هغه پوري د اړوندو مسايلو په هکله متوازن چلند نه ليدل کيږي. د دې مسؤوليت تر ډېره په مسلمانانو اړه لري. له يوه پلوه هغو په لوېديځ کي اسلامي فکر په پرله پسې او مسلسله توګه او د قاعدې او قرينې سره سم نه دی وړاندي کړی، ځکه دوی لوېديز ذهنيت او لوېديز سازمانونه لکه څنګه چي دي په پام کي نه دي نيولي. له بله پلوه چي مسلمانانو د خپل مذهب او ټولنيزو او سياسي مقاصدو په اړه څه ليکلي دي ډېر تند او تېز دي له دې امله دغسي ليکني معقولي نه دي ګڼلي سوي، په داسي حال کي چي د خبرو اترو لپاره د معقولو او مدللو خبرو وړاندي کولو ته ضرورت دی. (ليکوال)

واوښته. په تېره د سپټمبر تر يوولسمي وروسته امريکا او انډيوالانو[۱] پوښتنه کېداى سي چي دا څنګه ممکنه ده چي دونه زړه دښمني چي په بنسټيزه توګه مذهبي وه او د عېسوي کليسا د غلبې له امله وه، اوس هم په لوېديځ کي موجوده ده. په داسي حال کي چي اوس په لوېديځ کي مذهبي جذبات تقريباً ختم سوي دي.

د اروا پوهني د نوو پوهانو په نزد دغه ډول متضاد کړندود اريانوونکى نه دى. د غه اروا پوهان وايي چي که کوم څوک د هغه په ذهن کي له کوچنيوالي څخه د ناستو مذهبي عقايدو څخه لاس پر سر هم سي بيا هم له دغو عقايدو څخه يو ډول ځانګړي توهمات د هغه په ذهن کي پاتېږي. د اسلام په اړه لوېديز کړندود همدغسي دى. که څه هم د اسلام سره د دښمنۍ پر بنسټ رامنځته سوي تعصبونه اوس د ژوندانه د ماده پال تصور په وړاندي بې ارزښته سوي دي، خو د لوېديز انسان په لاشعور کي اوس هم پخوانۍ دښمني موجوده ده. کېداى سي د دې دښمنۍ شدت په هر انسان کي بېل بېل وي، خو د هغې په موجوديت کي څه اختلاف نسته. په لوېديځ کي د صليبي جګړو جذبې اوس هم خپل سيورى غوړولى دى. چي د مسلمانانو او ټولو اسلامي چارو په اړه د هغو چلند اغېزمن کوي.

په مسلمانانو کي زياتره دا خبره اورېدل کيږي چي په پخوا کي چي د جنګونو له امله په اروپا او امريکا کي د اسلام په هکله کومه کرکه

---

۱ - په ډېره خشنه، وحشيانه او ظالمانه توګه په مسلمانانو پسي را اخيستې ده.لکه چي په دې خبره اوس هر مسلمان ډېر ښه پوهيږي او هر مسلمان يې پر خپل ځان لمسوي.

پیدا سوې وه، هغه اوس کرار کرار ختمیږي[۱]. دا هم ویل کیږي چې د اسلام د ټولنیزو او مذهبي تعلیماتو د رشتینولۍ له امله په لویدیځ کې اسلام ته د تمایل نخښې لیدل کیږي. ډېر مسلمانان په دې اند دي چې د اروپا او امریکا ډېر وګړي به اسلام ومني. دغه اند پر خپل ځای نامعقول نه دی. ځکه موږ پوهیږو چې په ټولو مذاهبو کې یوازې اسلام د انسان د فطرت پر مسلماتو او ضروریاتو ولاړ دی او د انساني ټولنې ټولې اړتیاوې بشپړوي. زموږ پیغمبرﷺ موږ ته ویلې دي چې بالاخره به ټول انسانان اسلام ومني. خو له بده بخته دا امکان د یوې ذرې په اندازه هم نه لیدل کیږي چې په نژدې راتلونکې کې دغسې وسي. تر کومه ځایه چې په لویدیز تهذیب اړه نیسي، هغه د اسلام لور ته په هغه صورت کې هڅیږي چې د پرله پسې ټولنیزو اوښتونو نو (انقلابونو) سره مخامخ سي چې له امله یې د لویدیځ د اوسنۍ فرهنګي ځان تېروتنې پرده څیرې سي، ذهنیت یې ګردسره بدلون ومومي او د ژوند مذهبي توجیه ومني. اوس لویدیزه نړۍ د مادي بریالیتوبونو په نشه بدمسته سوې ده او بېله دې په بل څه نه پوهیږي چې د عیش او چړچو ژوند هغه نصب العین دی چې باید

---

۱- د ۲۰۰۱ د سپټمبر تر یوولسمي وروسته چې د امریکې، برتانیې او نورو اروپایي هیوادونو لخوا د تش په نامه ترهګرۍ پر ضد کومه «جګړه» د افغانستان، عراق او نورو مسلمانانو پر ضد په لار اچول سوې ده او اوس هم په ډېر شدت او ظالمانه توګه روانه ده، دهغې سره جوخت په امریکا او لویدیځ کې د کرکو نوې څپې په باډاسکو سوې دي. خو د دې سره سره په امریکا او لویدیځ کې د اسلام د مطالعه کوونکو او د دې مبارک دین د قبلوونکو شمېر په ډېره چټکتیا سره مخ پر زیاتېدو دی.

کوښښ یې وسي. د لوېدیځ د ماده پالني هوس پرله پسې زیاتیږي او څه کمی نه پکښې راځي. لکه چې ځیني مسلمانان فکر کوي. او نه د مذهب سره د دوی په مخالفت کې لږوالی راځي.

ویل کیږي چې نوي ساینس په دې منلو پیل کړی دی چې د طبیعت د کارخانې تر شا یو تخلیقي ځواک په کار بوخت دی. له دې څخه ځیني خوش فهمه وګړي داسې اخیسته کوي چې په لوېدیزه نړۍ کې د مذهب په اړه نوی شعور رامنځته کیږي. خو دا اند د لوېدیز ساینسي فکر په اړه پر غلط فهمې ولاړ دی. هیڅ باسنجشه ساینس پوه کله هم له دې امکان څخه انکار نه سي کولای چې دغه کاینات له یوه خوځند لامل څخه رامنځته سوي دي. تل دا پوښتنه سوې ده او اوس هم کیږي چې د دې یوه «لامل» صفات څه دي. ټول آسماني مذاهب دعوه کوي چې دغه لامل یاځواک سمیع او بصیر ذات دی، دغه ذات دنیا تخلیق کړې ده او هغه د یوه ځانګړي پلان او مقصد سره سم کاینات چلوي او هغه د هرڅه واک اختیار لري. په بله وینا هغه لوی څښتن ﷻ دی. خو نوی ساینس تر دې ځایه پوري تلو ته چمتو نه دی. (په حقیقت کې دا د ساینس په واک کې نه راځي) او د سمیع او بصیر خالق پوښتنه ګردسره پرېږدي. په دې هکله د ساینس چلند تقریباً داسې دی چې: «کېدای سي چې دغسې وي، خو ماته معلوات نسته، ځکه زما سره په دې خبره باندي د پوهېدو لپاره کومه ساینسي طریقه نسته». ښایي په راتلونکې کې دغه نظریه د وحدت الوجود غوندي نظریې پر غالب برابره سي په کومه کې چې روح او ماده، موخه او وجود، خالق او مخلوق ټول وي. دغه تصور د الله تعالی د اسلامي تصور پر لور مثبت قدم نه سي

ګڼل کېدای. ځکه دا له ماده پالني څخه بېلتون نه دی، بلکې په ډېره ځرګنده عقلي سطح د ماده پالني معراج باله سي.

حقيقت دادی چې نن چې لوېديځ له اسلامه څونه ليري دی، دغونه دمخه هيڅکله نه وو ليري. کېدای سي چې زموږ د مذهب کلک مخالفين اوس د منځه تلو په حال کې وي، خو د دې لامل د لوېديځ لخوا د اسلامي تعليماتو د ښېګڼو منل نه دي، بلکې دا د اسلامي نړۍ فرهنګي کمزورۍ او د هغې سره پاشل دي. يو مهال اروپا له اسلام څخه بېرېدل ځکه نو هغه د هر هغه شي دښمنه وه چې په اسلامي رنګ رنګېدلی وو. ان چې اروپا په تشو روحاني او ټولنيزو چارو کې هم د اسلام مخالفت کاوه. خو په داسي وخت کې چې مسلمان مخ پر له منځه تلو دی او د اروپا سياسي ګټو ته له اسلام څخه کومه خطره نه ده پاته، نو د اسلام په اړه د لوېديځ په بېره کې کمښت راغلی دی. د اسلام سره په مخالفت کې د شدت د کمښت لامل هم دغه دی. له دې څخه دا نتيجه نه سي راوتلای چې لوېديځ اسلام ته نژدې سوی دی. له دې څخه صرف دا ځرګنديږي چې لوېديځ له اسلام څخه بې غمه سوی دی[1].

---

۱- په اسلامي نړۍ کې د تېلو له امله د شتمنۍ په ډېر زياتوب سره په نړۍوال اقتصاد او سياست کې د اسلامي نړۍ اهميت بېخي ډېر زيات سوی دی ځکه د اسلامي نړۍ سره د لوېديځ ځانګړې علاقه پيدا سوې ده. په ځانګړې توګه د هنرونو او تاريخ په ډګر کې، خو د مذهب له پلوه اوس هم په لوېديځ کې اسلام نه دی منلی، په داسي حال کې چې د مسلمانانو او عېسويانو ترمنځ په دې اړه زياتي مذاکرې کيږي. (ليکوال)

## د اسلام په اړه د لوېديزيانو چلند

لوېديز تهذيب په هيڅ ګون د اسلام په اړه خپل ذهني چلند نه دی بدل کړی. هغه اوس هم د مخکې په شان د ژوندانه د مذهبي تصور مخالف دی او د دې خبري کوم معقول شهادت نسته چي په نژدې راتلونکې کي په دې چلند کي بدلون راسي. په لوېديځ کي د اسلام د ځينو تبليغاتي ادارو تاسيس او د ځينو اروپايانو او امريکايانو اسلام راوړل (چي زياتره له اسلامي تعليماتو څخه له خبرتيا پرته وي) د بدلون دليل نه سي کېدای. په يوه داسي پېر کي چي هره خوا د ماده پالني واکمني وي، د څو تنو لخوا د روحاني ارزښتونو په لټه پر مذهبي تصوراتو د کومي ولاړي عقيدې په اړه په ذوق او شوق ويناوي اورېدل بالکل فطري خبره ده. په لوېديځ کي يوازي د مسلمانانو تبليغي ډلي په کار نه دي بوختي، هلته د عېسويانو بې شمېري راهبانه ډلي هم سته چي د سمونونو سره مينه لري. پر دې سربېره هلته ډېر ځواکمن تحريکونه سته چي پر علم او عرفان باندي ټينګار کوي. هلته د بودايانو عبادتځايونه او تبليغي ډلي هم سته او د اروپا او امريکا په ښارونو کي داسي کسان هم سته چي بودايي مذهب يې منلی دی. د مسلمانانو تبليغي ډلي چي کوم دلايل وايي هغه دلايل د بودايي مذهب تبليغاتي ډلي هم وايي او وايي چي اروپا بودايي مذهب ته نژدې کيږي. د مسلمانانو غوندي د بودايانو ادعاوي هم د خندا وړ دي. د څو تنو لخوا د بودايي مذهب يا اسلام منل دا معنا نه ورکوي چي دغو مذهبونو په رشتيا پر لوېديز ژوند باندي اغېز اچول پيل کړي دي. دا هم ويل کېدای سي چي له دغو مذهبونو څخه هيڅ يوه تر معمول زيات محبوبيت نه دی موندلی او

چې څه محبوبیت یې موندلی دی له دې امله دی چې د روحانیت لټوونکو وګړو ذهنونه د بهرنیو عقایدو د جذب او بښېګڼو تر اغېزي لاندي راغلي دي. یقین دی چې ځیني د یادوني وړ استثناوي هم سته او په اسلام منونکو وګړو کي ځیني د حقیقت په لټه کي دي. خو د دې استثنایي پېښو پر بنسټ حکم نه سو کولای چې په تهذیب کي بدلون را روان دی. له بله پلوه که موږ د دغو استثناوو شمېر د هغو لوېدیزو وګړو د شمېر سره پرتله کړو چې د مارکسیزم غوندي خالصي ماده پالي نظریې پر لور په ډلو ډلو وردرومي، نو موږ په سمه توګه د لوېدیز تهذیب د رشتیاني تمایل کچه معلومولای سو.

لکه چې دمخه مو هم اندېښنه څرګنده کړې وه چې د مخ پر ډېرېدونکو ټولنیزو او اقتصادي ناکراریو او کړکېچونو له امله د نړۍوالو جګړو لړۍ پیلېدلای سي چې نه ده معلومه څونه اړخونه برخه پکښي ولري او څونه پوپنا کوونکي ساینسي وسلې پکښي استعمال سي. د دې په پایله کي به د لوېدیز تهذیب د ماده پالي ځان غولوني دونه هولناکي پایلي راووزي چې انسان به یوځل بیا په ډېر زور او زوږ او عاجزي سره د رشتیانیو روحاني حقایقو په لټه کي سي. تر دې وروسته به په لوېدیځ کي د اسلام بریالی تبلیغ ممکن سي. خو اوس دغه بدلون د راتلونکي په پرده کي پټ دی. د مسلمانانو دا وینا چې اسلامي اغېزي د لوېدیځ د روح د فتح کولو پر لور درومي خطرناکه تېروتنه ده. دغه ډول خبري نور څه نه دي بېله دې چې د مهدي د راتلو عقیدې ته د معقولیت جامه ورواغوندي. دا عقیده خطرناکه ده چې نابېره به یو ځواک را څرګند سي او له منځه تلونکې اسلامي ټولنه به پر نړۍ باندي غالبه کړي. ځکه چې دا موږ

ته پر دې حقیقت باندې له اعتراف کولو څخه د تېښتې لار را ښيي چې موږ اوس په فرهنګي لحاظ هيڅ نه يو پاته. پر اسلامي نړۍ باندې اوس لوېديزې اغېزې ډېرې ژورې دي. موږ د غفلت په خوب بيده يو، خو دغه اغېزې هرځای اسلامي ټولنه پوپناکوي. د اسلام د غلبې هيله يو شی ده خو د دغې هيلې ترسره کول په دروغجنو هيلو پورې تړل بل شی دی[1].

---

۱- د دې کتاب فاضل ليکوال که څه هم ډېر ښه ايماني جذبات لري او احاديث د سنتو مهم ماخذ بولي او د احاديثو د ټولګې د صحت منونکی دی، خو د مهدي رضي الله عنه دڅرګندېدو په اړه دلته په علمي ښويېدنه اخته سوی دی. په متواترو احاديثو کي چي د مهدي رضي الله عنه په هکله کوم آثار او علامات درج دي، هغه دونه څرګند دي چي د هغو په هکله څوک شک نه سي کولای.
له حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: «مهدي به زما له نسله وي د هغه تندی به پراخه وي او پزه به يې جګه وي، هغه به مځکه چي له ظلم او زور څخه ډکه سوې وي، له عدله ډکه کړي، او اووه کاله به حکومت وکړي» (سنن ابي داود، المهدي، ٤٢٨٥ حديث).
څنګه چي د امام مهدي رضي الله عنه په هکله خلکو ډېر افراط او تفريط کړی دی له دې امله ځيني خلک د هغه له شخصيت او راتلو څخه منکر سوي دي او ځينو بيا د خپل مهدي توب باطلي دعوې کړي دي. په داسي حال کي چي امام مهدي رضي الله عنه د حضرت عيسی علیه السلام دنيا ته تر بيا راتلو دمخه واکمن کيږي. د مهدي رضي الله عنه د راڅرګندېدو په هکله روايات په معنوي توګه د تواتر تر کچې رسېدلي دي، له دې امله له هغه څخه انکار ګمراهي ده. او د هغه پر راتلو باندي ايمان او باور لرل يو شرعي او ايماني ضرورت دی. مهدي رضي الله عنه راځي او مسلمان امت به له ظلم او جبر څخه ژغوري. په دې هکله سترو او جيدو عالمانو مدللي څرګندوني کړي او پر دې موضوع يې کتابونه ليکلي دي. د مسلمانانو دا کمزوري ده چي پر دوی باندي د ظلم پر مهال انتظار وي چي

**د مسلمانو زلميانو ښوونه**

تر څو چي مسلمان لوېديز تهذيب ته په دې سترګه ګوري چي هغه يوازنۍ څواک دی چي د مسلمانانو په جامده ټولنه روح ننه ايستلای سي، نو هغه پر خپل ځان وېسا او اعتماد ته تاوان رسوي او په بالواسطه توګه د لوېديځ دغه دعوه تصديقوي چي اسلام ويشتل سوی کارتوس دی.

ما په مخکنيو پاڼو کي د خپل اند سره سم دا ويلي دي چي اسلام او لوېديز تهذيب د ژوندانه په اړه بالکل متضاد تصورات لري، له دې امله دغه دواړه د هغو د روح له مخي يوځای نه سي سره تللای. په دې صورت کي موږ دا هيله څنګه کولای سو چي د لوېديځ پر کرښو د نوو ځوانانو تعليم به، کوم چي د لوېديځ پر فرهنګي تجربو او ارزښتونو ولاړ دی، له اسلام دښمنۍ څخه پاک وي؟ موږ په دې توقع کولو کي حق په جانب نه يو. البته په ځينو صورتونو کي کېدای سي چي ډېر هوښيار مسلمان ځوانان د لوېديځ د تعليم د نظام د ناوړتياوو له ښکار کېدو څخه وژغورل سي.

لوېديز تعليم هرومرو د پيغمبرﷺ پر پيغام باندي د نوو مسلمانو ځوانانو ايمان کمزوری کوي، او دا هوډ هم کمزوری کوي چي هغه د اسلام استازيتوب وکړي. حقيقت دادی چي زموږ کومو پوهانو چي لوېديز ارزښتونه غوره کړي دي په هغو کي مذهبي عقيده ورځ په ورځ کمزورې کيږي. خو له دې څخه دا نه جوتيږي چي اسلام د

کوم مهدي به راڅرګند سي او دوی به وژغوري. خو ښايي تر اوسه لا حالات تر دې پولي نه وي رسېدلي چي د امام مهدي؆ څرګندېدو ته اړتيا پيدا سي.

عملي مذهب په توګه په بې تعلیمه وګړو کي خپل حیثیت ساتلی دی. که څه هم دغه وګړي د اسلام په هکله ډېري ښې جذبې او ولولې لري، خو په دوی کي د لوېدیځ ځپلو (غرب زده) پوهانو په پرتله د خپل فهم سره سم د اسلام په هکله ډېر محدود تصور سته. له اسلام څخه د لوېدیځ ځپلو پوهانو د پردیتوب دا توجیه نه سي کېدای چي لوېدیز ساینس زموږ د مذهبي تعلیماتو پر ضد معقول دلایل لري. بلکي د دې اصلي لامل دادی چي د نوي لوېدیزي ټولني ذهني فضا د مذهب سره سخته په ټکر کي ده. دغه فضا په ځوان مسلمان توکم کي مذهبي تمایلات کمزوري کوي.

د مذهب منل یا له هغه څخه انکار یوازي د دلایلو مسئله نه ده. په ځینو صورتونو کي یو چلند په وجداني توګه هم غوره کیږي، کوم چي موږ بصیرت هم ورته ویلای سو، خو دا انسان ته په عامه توګه له فرهنګي چاپېریال څخه لېږدول کیږي. هغه یو کوچنی په پام کي ونیسئ چي له ماشومتوب څخه د موسیقۍ د آواز په اورېدو سره په منظمه توګه روزنه ورکول سوې وي. د دغه هلک غوږونه د سُر او تال د اورېدلو سره عادي کیږي. له دې امله هغه وروسته په ډېره مشکله موسیقي هم پوهیږي. خو کوم کوچني چي د خپل ژوند له پیل څخه موسیقۍ ته ورته کوم شی نه وي اورېدلی وروسته هغه ته د موسیقۍ د ډولونو په هکله خبري کول او نظر پر ورکول ډېر ستونزمن وي. دغه خبري د مذهب په هکله هم صدق کوي. لکه چي دا امکان سته چي ځیني وګړي د موسیقۍ لپاره له «غوږونو» څخه بې برخي وي. دغه راز دا امکان هم سته چي ځیني وګړي د مذهب د آواز د اورېدلو په هکله کاڼه وي. خو د عامو وګړو د ستر ډېرکي

لخوا د مذهب منل یا له هغه څخه انکار په دې اړه لري چي هغو په کوم ډول چاپېریال کي روزنه لیدلې ده. له دې امله حضرت پیغمبرﷺ فرمايي:

«كُلُ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَاَبَوَاهْ يُهَوِدَانَهَ اَوْ يُنَصِرَانِهِ اَوْ يُمَجِسَانِهِ» (صحیح البخاري، الجنایز، باب ما قیل في اولاد المشرکین، حدیث: ۱۳۸۵).

ژباړه: هر زېږېدونکی پر سلیم فطرت پیدا کیږي، خو د هغه مور او پلار هغه یهودي، یا عیسوی یا اورپالی (مجوسي) کړي.

په دې حدیث کي د «مور او پلار» الفاظو ته په منطقي توګه پراختیا ورکول کیږي او عام چاپېریال ځني مرادیږي. یعني کورنی ژوند، ښوونځی، ټولنه او نور، د کومو په ذریعه چي د کوچني لومړنی ژوند تشکیلیږي. له دې خبري انکار نه سي کېدلای چي د زوال په اوسني صورتحال کي د ډېرو مسلمانو کورنیو مذهبي چاپېریال او عقلي معیار ډېر ټیټ سوی دی. د دې نتیجه دا کېدای سي چي نوي ځوانان مذهب شاته وغورځوي. خو پر لوېدیزو کرښو باندي د مسلمان ځوان د تعلیم پایله غالباً دا راوزي چي په خپل ژوند کي د مذهب په خلاف چلند غوره کړي.

خو دلته دا ډېر مهم سوال پیدا کیږي چي د نوو علومو په هکله باید زموږ چلند څنګه وي؟ د لوېدیزو علومو پر ضد د مسلمانانو د احتجاج (ناخوښۍ او اعتراض) معنا هیڅکله دانه سي کېدلای چي اسلام د تعلیم مخالف دی. زموږ د مخالفینو د دې تور بنسټ نه په مذهب کي سته او نه په تاریخ کي. قرآن کریم په پلاوو پلاوو د علم پر تر لاسه کولو باندي ټینګار کړی دی او وایي: «څو چي تاسي پوه

سئ. څو چې تاسې غور وکړئ». د قرآن کریم په البقره سوره کې فرمايي:

﴿وَعَلَّمَ ءَادَمَ ٱلۡأَسۡمَآءَ كُلَّهَا﴾ [البقرة: ٣١].

ژباړه: «لوی څښتن آدم ته د ټولو شیانونومونه وښوول».

او په وروستیو آیتونو کې ویل سوي دي چې لوی څښتن چې آدمعليه السلام ته د شیانو نومونه وښوول له امله يې له ځينو اړخونو انسان تر ملايکو هم افضل دی. «نوم» د اصطلاحاتو د بیانولو د قدرت یا ناطقه قوت علامتي اظهار دی. دغه صفت په انسانانو پوري ځانګړی دی، چې له امله يې د قرآن کريم سره سم انسان پر مځکه باندي د لوی څښتن خلیفه سو. په بله وینا انسان ته ښايي چې علم ترلاسه کړي. له دې امله حضرت پیغمبرﷺ فرمايلي دي:

«طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَة عَلٰى كل مُسْلِمٍ» (سنن ابن ماجة، المقدمه، باب فضل العلماء والحث على طلب العلم، ٢٢٤حديث).

ژباړه: د علم زده کول د هر (نارینه او ښځينه) مسلمان سپېڅلې فريضه ده.

«وَمَنْ سَلَكَ طَرِيْقاً يَطْلُبُ بِهِ عِلْماً سَهَلَ اللهُ لَهُ طَرِيْقاً اِلى الْجَنَةِ» (صحيح البخاري، العلم، باب العلم، قبل القول والعمل).

ژباړه: او څوک چې د علم د ترلاسه کولو لپاره سفر کوي، نو لوی څښتن د هغه لپاره د جنت لار آسانه کوي.

«فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ، كفَضْلُ الْقَمَرِ عَلَى سَائِرِ الْكوَاكبِ» (جامع الترمذي، العلم، باب في فضل الفقه على العبادة، ٢٦٨٢ حديث).

ژباړه: د عالم پر عابد باندي دونه فضیلت دی لکه د سپوږمۍ پر ستورو باندي.

د اسلام په نزد چي د علم کوم فضیلت دی د هغه لپاره د قرآن او احادیثو حوالو ته اړتیا نسته. تاریخ شاهد دی چي اسلام چي علم ته څونه اهمیت ورکړی دی، بل هیڅ مذهب نه دی ورکړی. اسلام چي د علم او ساینسي څېړنو کومه هڅونه کړې ده د هغې پایله د امویانو او عباسیانو په پېر کي او په سیسلي او اسپانیه کي د عربو د واکمنۍ په پېر کي د پرتمینو فرهنګي کارنامو په بڼه رامنځته سوه.

زه د دې خبري یادونه ځکه نه کوم چي کله اسلامي نړۍ خپل دودونه او روایات پرې ایښي دي، له روحاني پلوه ړانده او له ذهني پلوه مفلسان سوي دي، نو زه پر تېرو پرتمینو مهالونو باندي نه ویاړم، ځکه د اوسني کرغېړن حالت په زمانه کي موږ ته پر خپله پرتمینه ماضي باندي د ویاړلو اړتیا نسته. خو موږ د دې احساس باید هرومرو وکړو چي زموږ د بدحال نتیجه زموږ بې پروایي ده او د دې لامل هیڅکله دا نه دی چي په اسلامي تعلیماتو کي څه کمی سته.

اسلام هیڅکله هم د پرمختګ او ساینس په لار کي نه دی خنډ سوی. اسلام د انسان عقلي بوختیاوي دونه خوښوي چي له امله یې انسان ته تر ملایکو غوره مقام ورکوي. بل هیڅ مذهب پر عقل دونه ټینګار نه دی کړی لکه اسلام چي کړی دی. د دې معنا داده چي د انساني ژوند په ټولو ښکارندو کي علم ته لوړوالی ورکړه سوی دی. که موږ د اسلام پر اصولو عمل وکړو نو له خپل ژوندانه څخه هیڅکله د نوو علومو د ایستلو تصور نه سو کولای. موږ ته ښایي چي د علم ترلاسه کولو او پر مختګ کولو ټینګ هوډ او عزم وکړو،

څو موږ د ساینس او اقتصاد په ډګرونو کې د لوېدیزو ولسونو سره سیالي وکړای سو. خو مسلمانانو ته هیڅکله نه ښایي چې د هر څه د لیدلو هیله د لوېدیځ له سترګو وکړي. دغه راز دوی ته نه ښایي چې لوېدیز اند دود غوره کړي. که مسلمان غواړي چې مسلمان واوسي نو دی دي د اسلام د روحاني تهذیب د بدلولو هیله د لوېدیځ د ماده پالو تجربو سره نه کوي. ښایي دغه تجربه د پانګوالۍ په بڼه وي یا د مارکسیستي نظام په بڼه.

علم په خپل ذات کې نه لوېدیز دی نه ختیز، بلکې د طبیعي حقایقو غوندي آفاقي دی. خو له هري زاویې څخه چې حقایقو ته وکتل سي او وړاندي کړی سي هغه زاویه د ولسونو د فرهنګي ذوق سره سمه بدلیږي. بیالوژي یا فیزیک له آره نه مادي دي، نه معنوي. دغه پوهني په مشاهده او د حقایقو په را غونډولو او تدوین پوري اړه لري چې عام قواعد ځني ترلاسه کیږي، خو کوم استقرائي فلسفي نتایج چې موږ د ساینس له فلسفې څخه اخلو د هغو بنسټ صرف پر حقایقو او مشاهداتو نه وي ولاړ، بلکې تر زیاتي کچې د هغو انحصار د ژوند او د هغه د مسایلو په اړه زموږ په وجداني او ذوقي چلند پوري وي. ستر جرمني فېلسوف کانټ ویلي دي: «که څه هم دا خبره اریانوونکې ښکاري خو یقیني ده چې زموږ عقل له طبیعت څخه نتایج نه اخلي، بلکې هغه ته یې منسوبوي». لنډه دا چې دلته د نظر داخلي زاویه اهمیت لري. ځکه چې دا زموږ تر مشاهده لاندي د مختلفوچارو تشریح او تعبیر په بنسټیزه توګه تر اغېزي لاندي راوستلای سي. نو ساینس چې نه مادي پال دی او نه معنوي، د کایناتو د متضادو توجیهاتو پر لور لارښوونه کولای سي. زموږ له

وړاندي څخه د ټاکلو تصوراتو سره سم دغه توجیهات معنوي یا مادي کېدلای سي. که څه هم د لوېدیځ پوهه ډېره لوړه ده خو څنګه چي مادي ده، نو له دې امله د خپلو تصوراتو او مادي مفروضو په اعتبار د مذهب ضد ده، ځکه نو د لوېدیځ د تعلیم نظام هم په مجموعي توګه لازماً د مذهب ضد دی. په بله وینا د نوي تجربوي ساینس مطالعه د اسلام د فرهنګي حقیقت لپاره نه سي مضره کېدای، بلکي د لوېدیز تهذیب روح د کومي په ذریعه چي مسلمان د ساینس مطالعه کوي ضررناکه ده.

له بده مرغه زموږ د پېړیو پېړیو بې پرواییو او غفلت موږ اړ کړي یو چي د ساینسي څېړنو لپاره د اروپا او امریکا له علمي وسایلو څخه ګټه واخلو. که موږ پر هغو اسلامي اصولو عمل کولای چي پر هر نر او ښځه مسلمان یې د علم ترلاسه کول فرض کړي دي نو موږ به د نوو علومو لپاره اروپا او امریکا ته داسي نه کتلای لکه په رېګستان کي چي تږی سړی سراب ته ګوري[1]. مسلمانانو زیاته موده له خپلو دندو څخه غفلت کړی دی، ځکه نو په جهل او بې وزلي اخته سوي دي. خو په دې برخه کي اروپا زښته زیاته پر مخ تللې ده. د دې خلا پر ډکولو باندي ډېر وخت لګېږي. دغونه وخت به موږ نوي علوم له لوېدیځ څخه تر لاسه کوو او له امله به یې ممنون یو. موږ ته په کار ده چي د لوېدیځ د ساینسي علومو او د هغو د طریقو پر زده کړه بسنه وکړو، له دې پرته یې باید نور هیڅ زده نه کړو. په بله وینا موږ

---

۱- سراب: د رېګني مځکي یا سړک هغه برېښېده چي د تودوښي په موسم کي د سپوږمۍ یا لمر د رڼا څخه د اوبو د شتون فریب ځني رامنځته کېږي.

ته له لوېديزيانو څخه د طبيعي ساينس په زده کولو کي اندېښنه نه ده په کار، خو بايد چي د هغو فلسفه غوره نه کړو. البته ويل کېداى سي چي دا مهال ډېر طبيعي علوم، د بېلګې په توګه اتومي فيزيک، له خالصو تجربوي څېړنو څخه وړاندي تللی، د فلسفې پولو ته ورننوتلی دی، له دې امله په ډېرو صورتونو کي د تجربوي ساينس او قياسي فلسفې ترمنځ څرګنده کرښه کښل ډېر ستونزمن کار ګڼل کيږي. دا خبره ډېره درسته ده، خو دا هغه ټکی دی چي بايد په هکله يې اسلامي ثقافت خپل جوهر څرګند کړي. د مسلمانو ساينس پوهانو دا دنده ده چي کله دوی د ساينسي څېړنو هغو بېلوونکو پولو ته ورسيږي نو دي د لوېديځ فلسفي نظريو ته نه ګوري او په آزادانه توګه دي د خپلو فلسفي دلايلو قوت استعمال کړي. په دې توګه هيله کيږي چي که هغوی اسلامي فلسفي اند دود استعمال کړي، د اکثرو نوو لوېديزو ساينس پوهانو د ډېرو اخيستل سوو نتايجو په خلاف به بل ډول نتايجو ته ورسيږي.

له دې څخه قطع نظر چي په راتلونکې کي څه کيږي، اوس هم ممکنه ده چي د لوېديځ د عقلي چلند دمرييتوب له غوره کولو پرته ساينسي علوم تر لاسه سي او تدريس يې هم وسي. اوس اسلامي نړۍ نوي فلسفي نقطهٔ نظر ته اړتيا نه لري، بلکي نوي ساينسي او فني تعليم او وسايلو ته اړتيا لري.

که زه وغواړم چي له اسلامي نقطهٔ نظره د يوې نمونوي تعليمي ډلي (بورډ) د رامنځته کولو لپاره مشورې وړاندي کړم نو زه به مشوره ورکړم چي لوېديځ چي په طبيعي علومو او رياضياتو کي څه برياليتوبونه ترلاسه کړي دي - د يادو سوو خبرو په پام کي نيولو سره

دي – په اسلامي ښوونځيو کي تدريس سي او اروپايي فلسفې، ادب او تاريخ ته دي د لومړيتوب داسي حق نه ورکول کيږي، لکه نن مهال چي ورکول سوی دی. ماچي په مخکنيو پاڼو کي څه ويلي دي د هغو په رڼا کي د اروپايي فلسفې په اړه بايد زموږ چلند دغسي وي. تر کومه ځايه چي په اروپايي ادب اړه لري، هغه بايد له پامه ونه غورځول سي، بلکي هغه بايد پر مناسب ژبني او تاريخي حالت باندي پرېښوول سي. اوس چي په ډېرو مسلمانو هيوادونو کي اروپايي ادب لوستل کيږي مناسب نه دی. د لوېديز و ارزښتونو او تصوراتو د ګټورتيا په هکله چي څونه ډېره مبالغه کيږي، له هغې څخه په فطري توګه د نوو ځوانانو په اومو ذهنونو کي په منفي اړخونو باندي له پوهېدو پرته د لوېديز تهذيب روح پيدا کيږي. په دې توګه نه يوازي دا چي د لوېديزو ارزښتونو د ښه ګڼلو لپاره لار اواريږي، بلکي عملاً پر دغو ارزښتونو باندي د ولاړ ټولنيز نظام نقالي او لېږدول هم پيليږي چي دا داسلام د روح خلاف کار دی. د مسلمانانو په ښوونځيو کي د اروپايي ادب د اوسني تعليم پر ځای بايد معقول، ځانګړی اسلامي ادب تدريس سي. څو زده کوونکي د خپلو ثقافتي شتمنيو او د هغو د غورو ارزښتونو سره بلد سي او په دې توګه د راتلونکي لپاره نوي هيلي را وټوکيږي.

په ډېرو اسلامي ادارو کي چي نن مهال په کومه طريقه اروپايي ادب تدريسيږي له هغه څخه په مسلمانو نوو ځوانانو کي له اسلام څخه ليري والي پيدا کيږي، او تر دې لا زياته خرابي دا ده چي مسلمان ځوانان د نړۍوال تاريخ لوېديز تعبير قبلوي. په دې توګه پخواني چلند «رومي د بربري پر ضد» رامنځته کيږي. لوېديځ له کوم

اعترافه پرته تاريخ داسي وړاندي کوي څو دا جوته سي چي په نړۍ کي چي تر اوسه څه توکمونه او فرهنګونه پيدا سوي دي، لوېديز توکمونه او فرهنګونه تر دې ټولو غوره دي. په دې توګه پر نړۍ باندي د لوېديځ د غلبې اخلاقي جواز پيدا کيږي. د روميانو له زمانې څخه اورپايي اقوامو د ختيځ او لوېديځ ترمنځ هر ډول توپير د خپلو «معيارونو» له مخي ليدلی دی. ځکه دوی فکر کوي چي د انسانيت د پرمختګ پيمانه د اروپا فرهنګي تجربې دي. له دې تنګ نظرۍ څخه د مسخ سوي انځور پيدا کېدل لازمي چاره ده، او د مشاهدې کرښي چي له مفروضه اروپايي «معيار» څخه څونه ليري کيږي، د لوېديځ د اوسېدونکو لپاره د تر نظر لاندي تاريخي مسايلو په رشتياني معنويت او جوړښت پوهېدل دغونه ستونزمن کيږي.

تر اوسه چي د نړۍ تاريخ ليکل سوی دی د لوېديزوالو د ځان خوښوني له امله د لوېديز تاريخ له پراخوالي پرته بل څه نه دی. په دې تاريخ کي د نورو ولسونو صرف په هغه صورت کي يادوني سوي دي چي کله د دوی موجوديت او پرمختګ د اروپا يا امريکا پر تقدير باندي په مستقيمه توګه اغېز اچولی دی. خو که تاسي د لوېديزو ولسونو تاريخ په ډېر تفصيل او څرګنده توګه وړاندي کړئ او د نوري نړۍ د تاريخ صرف څو غټ غټ تکي راواخلئ، نو لوستونکی به هرومرو په دې وغوليږي چي له ټولنيزو او عقلي اړخونو د اروپا او امريکا برياليتوبونه د نوري نړۍ په پرتله زښت زيات دي. له دې څخه دا سي معلوميږي چي نړۍ يوازي د لوېديځ او د هغه د فرهنګ لپاره پيدا سوې ده او د نورو فرهنګونو موخه صرف د لوېديز تهذيب د شان او شوکت لپاره مناسب چاپېريال تشکيلول دي. د نورو غير

اروپايي ولسونو د نوو ځوانانو پر اذهانو باندي د دغسي روزني اغېز دا کېدای سي چي په دوی کي د خپل فرهنګ، تاريخ، تېر او راتلونکي مهال په اړه د کمښت احساس پيدا سي. په لوېديز تعليمي نظام کي نوو ځوانانو ته داسي منظمه روزنه ورکول کيږي چي دوی له خپلي راتلونکي څخه نهيلي سي او دا ومني چي که د لوېديزو ايډيالونو په وړاندي سر ټيټ کړي نو خپله راتلونکې سمبالولای سي.

د دې منفي اغېزو سره د مقابلې لپاره د اسلامي فکر لارښوونکو ته په کار ده چي د مسلمانانو په تعليمي او تحصيلي ادارو کي د تاريخ پر تدريس باندي له سره کتنه وکړي. دا بېله شکه ستونزمن کار دی او په دې موخه بايد د نړۍ تاريخ هم د مسلمانانو له نقطۀ نظره وليکل سي او بايد زموږ د تاريخ مخکنۍ ښوونه او روزنه پر هيڅ حساب سي. دا کار ستونزمن دی خو ناشونی نه دی. اما ډېر اړين دی. که نه زموږ د نوي ځوان توکم په ذهنونو کي به د لوېديځ لخوا د ټيټتيا او سپکاوي د پاشلو سوو چټليو اغېز تر ډېره پاته وي. زموږ باور دی او د لوېديځ اوسنيو حالاتوجوته کړې ده چي د اسلام اخلاقيات، ټولنيز او فردي اخلاق، د عدل او لورېيني تصورات د لوېديز تهذيب د تصوراتو او افکارو په پرتله ډېر ښه او غوره دي. اسلام د توکميزو کرکو غندنه کوي او د انساني ورور ولۍ او برابرۍ لارښيي. خو لوېديز تهذيب د توکميزو او وطني تعصباتو له تنګو کړيو څخه نه سي راوتلای. په اسلامي نړۍ کي د طبقاتو او طبقاتي شخړو ځای اوګنجايش نسته.خو لوېديز تهذيب له لرغوني يونان او روم څخه نيولې تر اوسه پوري له طبقاتي شخړو او ټولنيزو کرکو څخه ډک دی. د دې خبري په بيا بيا کول اړين باله سي چي مسلمان له لوېديځ

څخه صرف یو ګټور شی زده کولای سي چي هغه طبیعي علوم او د هغو څانګي دي،خو له دې څخه مسلمان باید داسي پوه نه سي چي لوېدیز تهذیب تر اسلامي تهذیب غوره دی. خو که هغه په دې باور وکړي نو د دې معنا داده چي دی له اسلام څخه بې برخي دی. د یوه ثقافت یا تهذیب پر بل باندي د غوره والي پیمانه ساینسي علم نه دی. (په داسي حال کي چي دغه علم غوره دی) بلکي دغه لوړوالی د اخلاقي ځواک، د انساني ژوند د بېلابېلو اړخونو د تعبیر او تشریح او په هغو کي د یوله بله همکارۍ پیداکولو په وړتیا او صلاحیت کي دی. له دې پلوه اسلام تر نورو ټولو فرهنګونو غوره او افضل دی. انسان چي کوم مقام ته رسېدلای سي، هغه مقام پر اسلامي قواعدو او ضوابطو باندي په عمل کولو سره تر لاسه کېدلای سي. که موږ د اسلامي ارزښتونو خوندي کېده او د هغو بیا را ژوندي کېده غواړو نو موږ باید د لوېدیز تهذیب نقالي او لېږدونه پرېږدو، ځکه د لوېدیز تهذیب له ذهني اغېزو څخه اسلام ته د ګټي پر ځای ډېر تاوانونه رسیږي.

په تېرو مهالونو کي به مسلمانانو د ساینسي څېړنو په اړه خامخا غفلت کړی وي، خو د دې تشي د ډکېدو لپاره موږ باید لوېدیزي پوهني بېله پام او فکره ونه منو. زموږ د ساینسي وروسته پاته والي او بې وزلۍ تاوانونه د دغو زهرجنو تاوانونو په پرتله تر هغو ډېر لږ دي چي موږ په پټو سترګو د لوېدیځ د تعلیمي نظام تقلید وکړو. دغه زهر د اسلامي نړۍ په روحاني پېړي (بدن) هم ورننوزي. که موږ له ثقافتي پلوه په صحیح معنا د اسلام حفاظت کول غواړو نو موږ باید د لوېدیز تهذیب له ناوړو اغېزو څخه چي زموږ ذهني تمایلاتو او

ټولنیزو اډانـو تـه تـاوان رسـوي، خپـل ځانونـه وسـاتو. د لوېـدیځ د دودونو او لارو چارو او د ژوند د ډول له نقلولو څخه مـوږ پـه کـراره کراره د لوېدیځ اخلاقي نقطهٔ نظر پر غوره کولو او خپلولو مجبوریږو او د ظاهري کړو وړو په نقلولو سره موږ ورو ورو هغه نړۍوال نظـر منو چي د لوېدیزیانو د ظاهري کړو وړو منځته راوړونکی او مسـؤول دی.

## د لوېدیځ پېښې څله؟

د مسلمانانو لخوا په فردي او ټولنیزه توګـه د لوېـدیځ د ژونـد دود لېږدول او د هغه د پېښو کـول بېلـه شـکه د اسـلامي تهـذیب شـتون، بلکي د هغه بیا ژوندي کولو ته تر ټولو ستره خطره ده. دغـه فرهنګـي ناروغي څو لسیزي د مخه پیـل سـوې ده. مسـلمانانو چـي د لوېـدیځ مادي پیاوړتیـا او پرمختیـا ولیـدل او هغـه یـې د خپـل نـاوړه او نتلـي حالت سره پرتله کړه نو سخت نهیلي سول او لـه دې املـه د پېښـو او لېږدوني تمایل پکښي پیدا سو. د اسلام له سمو تعلیمـاتو څخـه د نـه خبر تیا له امله چي سبب یې د تش په نامه علماوو د ډلي تنګ نظري ده، په مسلمانانو کي دا خیال پیـدا سـو چـي دوی د نـړۍ لـه مـخ پـر ودي یون سره نه سي ملګري کېدلای تر څو چي د لوېدیځ ټولنیزي او اقتصادي طریقې غوره نه کړي. څنګه چي اسلام د جمود ښکار سوی دی، له دې امله ډېر مسلمانان دې سطحې پایلي ته رسـېدلي دي چـي د اسلام ټولنیز او اقتصادي نظـام د پرمختـګ اړتیـاوي نـه سـي پـوره کولای، ځکه نو په هغه کي باید پر لوېدیزو کرښو باندي ترمیم راسي. دغه روڼ اندي مسلمانان د دې خبري د معلوملـو زحمـت نـه کـاږي

چې د مسلمانانو په زوال کې د اسلامي تعليماتو څونه دخل دی. دغه وګړي د اسلام د رښتيانی ايډيالوژۍ څېړنه هم نه کوي. البته دوی دا وايي او سم وايي چې د دوی د پېر د دينياتو د ماهرينو تعليمات په ډېرو چارو کې د مادي برياليتوبونو په لار کې خنډ دي. خو دغو وګړو اصل ماخذ قرآن او سنت ته د رجوع کولو پرځای په پټه خوله شريعت د جامدي فقهي سره مترادف ګڼلی دی. بيايې دا پايله را ايستلې ده چې په شريعت کې د ډېرو سوالونو جواب نه موندل کيږي، ځکه نو د دوی له شريعت څخه عملاً هيلي شلېدلي او هغه يې تېري کيسې او مازي نظري کتابي علم ګڼلی دی. دوی ته دا هيله پيدا سوې ده چې د لوېديز تهذيب په نقلولو سره اسلامي نړۍ د خوارۍ او ځوړتيا له چيکړ څخه را ايستل کېدای سي.

د دغو «روڼ اندو» مسلمانانو د لار ورکوونکو کوښښونو سره د دوهمي درجې د هغو معذرت غوښتونکو ليکنو سېلاب مرسته وکړه چې د شلمي پېړۍ په لومړيو دوو لسيزو کې خپرې سوې. که څه هم د دغو ليکنو په ذريعه د اسلام عملي تعليمات نه دي نفي سوي خو د هغو په ذريعه په دې خبره د پوهېدو کوښښ سوی دی چې اسلامي تعليمات د لوېديزي نړی د ټولنيزو او اقتصادي تصوراتو تابع کېدلای سي. په دې توګه د لوېديز تهذيب لېږدول جايز وګڼل سول او په دې ډول د اسلام د اساسي ټولنيزو اصولو سره د اړيکو شلوون ته لار اواره سوه. له دې امله د تل په څېر د اسلامي «پرمختګ» چپنه واغوستل سوه چې اوس له زياتو مخ پر ودي اسلامي هيوادونو څخه يو شمېر ملکونه پر دغه لار روان دي.

ډېر مسلمان «پوهان» وايي په دې کي کوم روحاني ارزښت نسته چي موږ داسي اوسيږو که هاسي. لوېديز لباس اغوندو که د پلرو او نيکونو لباس. زموږ دودونه او رواجونه زاړه سوي دي که نه دي. خو دغه ډول خبري ګمراه کوونکي دي. بېله شکه چي په اسلام کي تنګ نظري نسته. لکه چي د دې کتاب په لومړي باب کي بيان سوه اسلام د انسان لپاره د خپلو څواکونو او وړتياوو د پر کار راوستلو لپاره پراخه ډګر وړاندي کوي په دې شرط چي له مذهبي تعليماتو څخه مخالفت ونه سي. خو د لوېديزي ټولني ځيني ډېر مهم اړخونه د اسلامي تعليماتو خلاف دي. د بېلګي په ډول د نارينه وو او ښځو يو ځای آزادانه ناسته پاسته او د اقتصادي بوختياوو لپاره پر پانګه باندي سود. يوازي سطحي وګړي داسي ګڼي چي د يوه تهذيب د ظاهري ليږدولو معنا دا نه ده چي د دغه تهذيب روح پر ليږدوونکي باندي اغېز کوي. تهذيب د يوه روح لرونکي غوندي دی څنګه چي موږ د هغه ظاهري بڼه غوره کول پيل کړو، د هغه دننني اغېزي په غير محسوسه توګه زموږ پر بشپړ چلند پرېوزي. دغه حقيقت پيغمبرﷺ په دې الفاظو بيان کړی دی:

«مَنْ تَشَبَهَ بِقَوْمٍ فَهُوَمِنْهُمْ» (سنن ابي داود، اللباس، باب في لبس الشهرة، ٤٠٣١ حديث).

ژباړه: څوک چي د کوم قوم سره ورته او مشابه سي، هغه له هغو څخه دی[1].

---

١- په لوېديزو ټولنو کي په اوسنيو لسيزو کي جنسي آواره ګی، بې لاريتوب، او د نارينه وو او ښځو اختلاط ډېره پرمختيا موندلې ده. چي د اسلام د اخلاقي

دغه مشهور حدیث مازي اخلاقي خبرداری نه دی، بلکي یو معروضي او واقعي حقیقت بیانوي. په حقیقت کي چي مسلمان د کوم غیر اسلامي تهذیب د بهرنیو ښکارندو تقلید کوي هغه لازماً په کرار کرار د هغه په وینو او غوښو کي سرایت کوي.

په دې صورت کي د تولنیز ژوندانه «د مهمو او غیر مهمو» اړخونو بنسټیز توپیر لیدل تقریباً ناممکن کیږي. په دغسي حالت کي هیڅ شی غیر مهم نه وي. د بېلګې په ډول تر دې لویه غلط فهمي نه سي کېدلای چي وویل سي د کالو حیثیت یوازي ظاهري دی او د انسان د ذهني او روحي شخصیت سره څه اړیکه نه لري. کالي د عوامو د پیړیو پیړیو ذوق او اړتیاوو پر بنسټ په پرله پسې پرمختیا کولو سره ځانګړې بڼه غوره کوي. د کالو فېشن د عوامو د ښکلاخوښوني د ذوق سره برابر وي. د عوامو د کړنو او تمایلاتو د بدلون سره یوځای په کالو کي هم بدلون رامنځته کیږي. د مثال په ډول ننی لوېدیز فېشن د نوي لوېدیځ د ذهني او اخلاقي چلند بشپړ استازیتوب کوي. نو که مسلمان خپل لباس پرېږدي او لوېدیز لباس غوره کړي په غیر شعوري توګه د لوېدیځ مزاج غوره کوي او د هغه د ذهني او اخلاقي شتون په بدلون سره پای د نوي لباس سره «سمون» خوري. په دې

بنسټونو خلاف ده. پر دې باندي زیاتو تبصرو ته اړتیا نسته. تر کومه ځایه چي په سود اړه لري هغه د نوو اقتصادي بوختیاوو لازمي برخه ده. خو باید په دې پوه سو چي مسلمانانو د بېله سوده اسلامي بانکوالۍ د نظام په رامنځته کولو کي زیاته پرمختیا کړې ده. په دې توګه د یوه داسي اقتصادي نظام د رامنځته کېدو پر لور وړاندي تګ سوی دی چي د شریعت د غوښتنو سره سم دی. (لیکوال).

توګه هغه د خپلو وګړو د ثقافتي تصوراتو د ستري برخي څخه د بېزارۍ اعلان کوي او ورو ورو د بهرني تهذيب دوديز مزاج، د هغه د ښکلاخوښوني ارزښتونه او د هغه خوښ او ناخوښ غوره کوي او بالاخره د هغه تهذيب ذهني او اخلاقي مرييتوب قبلوي. په بله وينا که کوم مسلمان د لوېديز والو د لباس، د هغو د عاداتو او کړو وړو او د هغو د ژوند دود تقليد کوي نو د خپل تهذيب سره غداري کوي که څه هم دغه کار په نيک نيت کوي. دا شونې نه ده چي د يو چا دي بهرنی تهذيب خوښ نه وي خو د هغه تقليد دي کوي. دغه راز دا هم شونې نه ده چي د يوه داسي تهذيب تقليد وکړي چي د ده د ژوند د مذهبي نظريې سره مخالف وي او بيا ښه مسلمان هم پاته سي.

د يوه بهرني تهذيب تقليد په ځان کي د کمښت د احساس پايله وي. دغه خبر د هغو مسلمانانو هم ده چي د لوېديز تهذيب پيښې کوي. دوی د لوېديځ څواک، فني وړتيا او ظاهري ډول او سينګار د اسلامي نړۍ د ټيټ حالت سره پرتله کوي او دې پايلي ته رسيږي چي زموږ په زمانه کي د لوېديز ژوند د اند دود له غوره کولو پرته بله لار نسته. د خپلو نيمګړتياوو او کمزوريو په ګناه اسلام ملامتول د نن مهال فېشن ګرځېدلی دی. تر ټولو زيات زموږ تش په نامه پوهان معذرت غوښتونکي چلند غوره کوي او کوښښ کوي چي پخپله او په نورو داومني چي د لوېديزو ارزښتونو د غوره کولو په لار کي اسلام خنډ نه ګرځي.

د اسلامي نړۍ د ويښولو لپاره اړينه ده چي د سمونونو تر پيلولو دمخه مسلمان د خپل مذهب او ټولنيزي اډانې په اړه د خجالت د احساس رويه پرېږدي. يو مسلمان بايد خپل ځان په نړۍ کي سر

لوړی کړي او واوسیږي. دی باید په دې احساس وي چې دی له نوري نړۍ څخه توپیر لري او تر نورو ټولو غوره دی، په دې باید وویاړي او توپیر باید د یوه ارزښتناک صفت په توګه خوندي کړي. د خجالت د احساس د څرګندولو او په نورو ثقافتونو کې د خپل ثقافت د مدغمولو او یوځای کولو پر ځای باید د خپل دغه ارزښتناک صفت اعلان په زغرده او ډېره زړه ورتیا سره وکړي. د دې معنا دا نه ده چې مسلمان له بهرنۍ نړۍ څخه ګردسره بېل سي، البته دی باید د خپل تهذیب له پرېښوولو پرته وخت په وخت د بهرنیو تهذیبونو نوي او مثبتي اغېزي وڅېړي. د دې یو مثال د اروپا رنسانس (بیا رغښت) دی. موږ لیدلي دي چې اروپا څونه ژر د عربو علمي اثرات ومنل، خو اروپا د عربو لباس او ژوند دود ونه مانه او د عربو د ثقافت پیښې یې ونه کړې او خپله پوهه او ښکلایي آزادي یې تر جار نه کړه. اروپا د عربو اغېزې په خپله مځکه کي د کودو په څېر استعمال کړې، لکه چې عربو په خپله زمانه کي یوناني اغېزي استعمال کړې. په دغو دواړو صورتونو کي روحاني شتمني زیاته سوه او یو نوی او ځواکمن تهذیب راوزېږېد، چې ډېر باوري او له ویاړه ډک وو. هر فرهنګ چې خپل ویاړونه هېر کړي او له خپل تېر مهال څخه اړیکي وشلوي وده او پر مختګ نه سي کولای، بلکي ژوندی نه سي پاته کېدلای.

د خواشینۍ خبره ده چې په اسلامي نړۍ کي د لوېدیځ تقلید پر مخ روان دی او مسلمانان لوېدیز اندونه او تصورات خپلوي، له خپل تېر پرتمین او له ویاړه ډک مهال څخه خپلي اړیکي شلوي او په دې توګه نه دا چې د خپل فرهنګ جرړي کاږي، بلکي روحاني او معنوي

ريښې يې هم غوځوي. د دې مثال د هغي وني دی چي ډېره قوي وه، خو د هغې ريښې سستي کړی سي او له امله يې مخ پر وچېدو سي، څنګه چي دا له خپلو خوړو بې برخي سوې ده، ځکه يې نو پاڼې ژړيږي، ښاخلې يې ماتي سي او وچه کلکه او د له بېخه ايستلو خطر يې رامنځته سي.

اسلامي نړۍ اوس مخ پر له منځه تلو ده او لامل يې دادی چي د کار او عمل يو مذهب د مازي ظاهري دودونو او رواجونو مذهب جوړ سوی دی، روح يې ځني ايستل سوې او تش پړی يې پاته دی. د دې مذهب د بيا راژوندي کولو سمه لار د لوېديځ پيښې او تقليد نه دی. بيا نو پوښتنه داده چي مسلمان د ذهني او عقلي خوځېدو او تحريک لپاره کوم چي نن مهال بېخي ډېره اړتيا ورته لري کوم لور ی واخلي؟

جواب ډېر آسانه دی. په حقيقت کي جواب په سوال کي نغښتی دی. د دې جواب اسلام دی. د اسلام په هکله ما په پلاوو پلاوو ويلي دي چي دا يوازي عقيده نه ده، بلکي دا د انفرادي او ټولنيز ژوند کړنلار ده. بهرنی ثقافت کېدای سي دا په خوله ومنډي او ختم يې کړي. ځکه د دې ثقافت اخلاقي بنسټونه له نورو څخه بېل دي. د دې ثقافت بيا را ژوندي کېده هله کېدای سي چي موږ هغه دخپل ځاني او ټولنيز ژوند په ټولو برخو کي غوره او پلی کړو.

د نوو اندونو او متضادو چلندونو تر اغېز لاندي چي د اوسني دور ځانګړتيا ده اسلام بېله عملي کولو نه سي قايمېدلای. که پر اسلام باندي د پېړيو تپل سوی طلسماتي خوب په ويښتيا بدل سي، نو ژوندی کېدای سي، که نه مړ به سي. د مسلمانانو حال دا مهال د هغه

مسافر غوندي دی چي دوه لاري ته رسېدلی وي. دی کېدای سي پر دغي دوه لاري ودرېږي، خو د دې معنا به له لوړي مړینه وي. دی هغه لار غوره کولای سي چي پر ډېر نخښه ورته لیکلي وي: «د لوېدیځ پر لور»، خو په دې صورت کي به دی د تل لپاره د خپل تېر مهال څخه اړیکي شلوي. دی دوهمه لار هم غوره کولای سي چي ډېر نخښه یې وایي: «د اسلام د حقیقت پر لور». دغه لار یوازي د هغو خلکو ده چي پر خپل تېر مهال او په یوه خوځنده او پرتمینه راتلونکې باندي د هغه د بدلېدو پر امکاناتو یقین لري.

## حدیث او سنت

په لومړیو څو لسیزو کي د اصلاح او سمون په هکله ډېري رایي وړاندي سوې او د اسلام د ناروغ بدن لپاره ډېرو روحاني درملګرو پیټنټ درمل توصیه کړل. خو تر اوسه پوري دغه ټول درمل بې ګټې جوت سوي دي. ځکه چي چالاکو درملګرو د خپلو درملو، مقویاتو او اکسیرونو تر څنګ د هغو طبیعي خوړو توصیه هېره کړې ده چي له امله یې ناروغ لومړنی سېک تر لاسه کاوه. یوازني خواړه چي د اسلام پړی (جسد) یې سهلای (هضمولای) سي، روغ وي که ناروغ، هغه د حضرت پیغمبرﷺ سنت دي. تر دیارلسو پېړیو په زیاته موده کي د اسلام د عروج او لوړتیا کیلي سنت وه او هیڅ لامل نسته چي دغه سنت دي د اوسني حالت د له منځه وړلو کیلي جوته نه سي. د اسلام د بقا او پرمختیا لپاره پر سنتو باندي عمل ضروري دی. د مسلمانانو د تیت او پرک کېدو او زوال لامل له سنتو څخه غفلت دی. سنت د اسلام د کور اوسپنیز چت دی. که تاسي د کومي

ودانۍ چت ليري کړئ نو د ودانۍ ورانېدو ته مه اريانېږئ. د سنتو سره تړون او پيوستون يو ساده او منلی حقيقت دی. پر دې باندې په ټول اسلامي تاريخ کې د علم خاوندانو اتفاق درلود. خو نن د هغه د نه منلو لامل د لوېديز تهذيب زياتېدونکی اغېز دی چې موږ ټول ښه په پوهېږو. خو سنت يوازنی حقيقت دی چې موږ له تيت او پرک کېدو او اوسني شرمناک زوال څخه را ايستلای او ژغورلای سي. د سنتو اصطلاح دلته په پراخو معناوو استعمال سوې ده. له دې څخه موخه د حضرت پيغمبرﷺ اقوال اوافعال او تقرير (ويناوي، کړني او چلند) دی. د هغهﷺ بې ساری ژوند د قرآن کريم تفسير دی او د قرآن کريم سره موږ هله پشپړ انصاف کولای سو چې موږ د حضرت پيغمبرﷺ متابعت وکړو، کوم چې دغه قرآن پر نازل سوی دی.

موږ وينو چې د اسلام اصلي برياليتوب چې هغه له نورو آسماني نظامونو څخه بېلوي، په دې کې دی چې په هغه کې د انساني ژوندانه د اخلاقي او مادي اړخونو په هکله بشپړه همږغي مونده سي. د اسلام د ځرګندېدو پر مهال د اسلام د سترو بريو يو لامل دا وو چې هغه انسان ته دغه نوی پيغام ورکړ چې د جنت د حصول لپاره له دنيا څخه کرکي ته اړتيا نسته. د اسلام يو ښکاره صفت دادی چې وايي پيغمبرﷺ کوم چې لوی څښتن د انسانيت د لارښووني لپاره را لېږلی دی، د انساني ژوند د معنوي او مادي دواړو اړخونو د ښه کولو لپاره څنګه فکر کاوه. که کوم څوک د روحاني چارو او د ټولني او ورځني ژوندانه د چارو په منځ کې توپير او امتياز رامنځته کوي نو د دې معنا داده چې د اسلام په هکله ژوره پوهه نه لري. دا ادعا چې موږ د معنوي چارو په اړه پر احکامو د پابندۍ مسؤول يو، خو د نورو چارو

په اړه د پابندۍ مسؤولیت نه راته متوجه کیږي، د روحیې په اعتبار غیر اسلامي ګڼل کیږي. دا داسې خبر ده لکه چې ویل کیږي چې د قرآن کریم ځینې تعلیمات د هغو د نزول پر وخت د «جاهلو» عربو لپاره وه او هغه د شلمې او یوویشتمې پیړۍ د «مهذبو او پوهو» خلکو لپاره نه دي. د دې خبرو په ژورو کې د عربي پیغمبرﷺ د کړنو د بې اعتباره کولو یو عجیب او غریب فهم په کار کولو لګیا دی.

لکه څنګه چې د مسلمان ژوند د هغه د روحاني او جسماني ژوند د بشپړ تعاون مظهر باله سي، بالکل همدغسې د پیغمبرﷺ لارښوونې زموږ د ټول ژوند اړخونه په غېږ کې نیسي؛ یعني د اخلاقو او عملي او انفرادي او ټولنیزو اړخو نو لپاره لارښوونې برابروي. د سنتو ژوره معنا دغه ده. قرآن کریم فرمايي:

﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾﴾ [النساء: ٦٥].

ژباړه: «ای محمده! ستا په پروردګار قسم چې دغه وګړي نه سي مومنان کېدلای څو تا په خپل منځي شخړو کې پرېکړه کوونکی ونه مني، بیا چې ته څه پرېکړه وکړې له هغې څخه په خپلو زړونو کې په تنګ نه سي، بلکې هغه په خوښې سره ومني».

بل ځای فرمايي:

﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِى يُحْبِبْكُمُ ٱللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣١﴾ قُلْ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٣٢﴾﴾ [آل عمران: ۳۱-۳۲].

ژباړه: «ای پیغمبره! خلکو ته ووایه که تاسې په رشتیا له لوی څښتن سره مینه لرئ نو زما پیروي وکړئ. لوی څښتن به هم له تاسې سره مینه

وکړي او ستاسي ګناوي به در وبخښي او لوی څښتن ډېر بخښونکی او مهربان دی. ورته ووایه چي د لوی څښتن او د هغه د رسول حکم ومنئ بیا که هغوی دا بلنه ونه مني نو دا بیا ښېخي نه سي کېدای چي لوی څښتن له داسي خلکو سره مینه وکړي چي د هغه او د هغه د رسول له اطاعت څخه انکار کوي».

له دې امله د پیغمبرﷺ د سنتو درجه تر قرآن کریم وروسته ده.او دا د اسلامي قانون دوهم ماخذ دی. حقیقت دادی چي موږ باید د سنتو په رڼا کي قرآني تعلیمات تعبیر او تشریح کړو، څو په عملي ژوندانه کي اختلافونه رامنځته نه سي. د قرآن کریم د ځینو آیتونو په معنا باندي پوهه له بېلو بېلو طریقو تر لاسه کیږي. ډېر سوالونه دي چي عملي اهمیت لري خو په قرآن کریم کي د هغو په اړه څرګندي لارښووني نه ترلاسه کیږي. د قرآن مجید روح هرځای یوه ده، خو له هغه څخه په هره چاره کي عملي لارښووني ترلاسه کول څه آسانه خبر نه ده. موږ ایمان لرو چي قرآن د لوی څښتن کلام او بشپړ او جامع کتاب دی. د دې منطقي معنا داده چي د هغه د پیغمبرﷺ له لارښووني پرته یې استعمال نه کړو. د پیغمبرﷺ لارښوونه د هغه له سنتو څخه تر لاسه کیږي او د قرآن کریم د تعلیماتو تفسیر او تشریح له هغه پرته بل څوک نه سي کولای، ځکه دغه کتاب د انسانیت د لارښووني لپاره ګردسره پر هغه نازل سوی دی.

اوس موږ دې مهمي پوښتني ته رسیږو چي د پیغمبرﷺ د قول او فعل د روایت کوونکو وسایلو د صحت معیار کوم دی چي له هغه څخه د نبيﷺ اسوه او د هغه تعلیمات تر موږ پوري رسیږي؟ دغه وسایل احادیث؛ یعني د پیغمبرﷺ د قول او فعل روایتونه دي چي

اصحابو کرامو‌ﷺ بیان کړي دي او د اسلام په لومړیو څو پېړیو کې پر هغو باندې تر جرح او تعدیل وروسته راغونډ سوي دي. د نوي پېړ د ځینو مسلمانانو وینا ده چې دوی پر سنتو باندي عمل کولو ته چمتو دي خو چې د دوی یقین سي چې هغه احادیث چې دغه سنت پر مبني او ولاړ دي د اعتماد وړ وي. له بده مرغه زموږ په پېړ کې په اصولي توګه د زیاتو احادیثو له صحت څخه انکار یو ډول فېشن ګرځېدلی دی. له دې امله د سنتو د بشپړي مجموعې صحت له خطر سره مخامخ سوی دی.

آیا دغه خبري کوم ساینسي بنسټ لري؟ آیا د اسلامي قانون د باور وړ ماخذ په توګه داحادیثو د نه منولو او مستردولو کوم ساینسي جواز سته؟ د احادیثو منکرینو ته ښایي چې داسي معقول دلایل وړاندي کړي چې له هغو څخه د تل لپاره دا جوته سي چې نبيﷺ ته د منسوبو احادیثو روایات د باور وړ نه دي، خو تر اوسه داسي نه دي سوي.

اوسمهال په ختیځ او لوېدیځ کې د احادیثو منکرینو د روایاتو د صحت د ننګوني (چیلنج کولو) زیات کوښښونه کړي دي، خو دوی د خپلو خالصو ځاني کره کتنو په ملاتړ د کومي ساینسي څېړني پایلي وړاندي نه کړای سوې. دا کار ډېر ستونزمن دی، ځکه چې د احادیثو لومړنیو غونډوونکو، په ځانګړې توګه امام بخاري او امام مسلم رحمة الله علیهما هر روایت د درایت د اصولو سره سم په سختي سره کره کړی او بیا غوره کړی دی. دغه اصول تر هغو اصولو ډېر سخت دي چې لوېدیز مورخین یې د تاریخي لیکنو د کره کولو لپاره په عمومي توګه استعمالوي.

په پيل کي چي محدثينو کرامو د روايتونو د کره کولو لپاره څونه سخته طريقه غوره کړې وه، پر هغې باندي بحث کول د دې کتاب له حوصلې څخه د باندي خبر ده. زموږ د موخي لپاره دا بسنه کوي چي د پيغمبرﷺ د احاديثو د معنا او د هغو د روايتونو د غونډولو او د هغو د کره کولو په لړ کي يو بشپړ علم رامنځته سو. د روايت کوونکو د ژوند هر اړخيزه څېړنه او پلټنه کېدل چي يو تاريخي علم ځني رامنځته سو کوم چي اسماء الرجال ورته وايي. په دې کي د هغو ټولو اشخاصو چي کوم حديث يې روايت کړی وو د تفصيلي ژوند ليکونو نه شلېدونکې لړۍ رامنځته سوه. د احاديثو د روايت کوونکو نرو او ښځو د ژوند پر هر اړخ څېړني وسوې. يوازي د هغو راويانو روايتونه ومنل سول چي د خپل ژوند دود او روايتونو په منلو او بيانولو کي د سترو محدثينو پر ټاکلو اصولو باندي په سختي سره برابرېدل او هغونه زيات رشتيني ګڼل کېدل چي چاپې تصور کولای سو. له دې امله که کوم څوک د کوم ځانګړي حديث له صحت يا د احاديثو د درستي ټولګي له صحت څخه انکار کوي نو د ده د دې خبري د ثبوت مسؤوليت په هغه اړه لري. د کومي تاريخي ذريعي پر صحت باندي اعتراض ساينسي بنسټ نه سي درلودلای تر څو چي اعتراض کوونکی دا ثابته نه کړي چي دغه ذريعه د اعتبار وړ نه ده. که په خپله د دغي ذريعي يا له روايت کوونکو څخه د يوه يا زياتو په خلاف کوم معقول ساينسي دليل وړاندي نه کړای سي يا په دې هکله کوم ترديدي بيان موجود نه وي نو موږ د دغه روايت پر صحيح ګڼلو مجبور يو.

د مثال په ډول که څوک پر هند باندي د محمود غزنوي د بريدونو يادونه کوي او ته نابېره ودرېږې او ووايې: «ماته معلومات نسته چي محمود به کله هم هند ته تللی وي. دا يو بې سر او بوله کيسه ده چي تاريخي ثبوت نه لري». په دې صورت کي به څه وسي؟ دغه مهال به يو څوک چي له تاريخ څخه خبر وي ستا د تېروتني د سمون کوښښ وکړي او د سلطان د هممهالو د راپورونو پر بنسټ به د تاريخ په حوالو ثابته کړي چي سلطان محمود هند ته تللی وو. په دې صورت کي تاته لازمه ده چي ثبوت ومنې که نه پر تا به د لېوني ګومان وسي چي بېله دليله له رشتيانيو تاريخي حقايقو څخه انکار کوې. که دا خبره سمه وي نو يو څوک پوښتنه کولای سي چي د احاديثو منکرين له دغي منطقي انصاف خوښوني څخه ولي کار نه اخلي؟

د حديث د درواغ ګڼلو بنسټيز لامل دا کېدای سي چي د روايت لومړۍ ذريعې يعني صحابي يا په راوروسته راويانو کي يوه په پوهه درواغ ويلي وي. تر کومه ځايه چي په صحابي اړه لري نو د هغه د درواغو ويلو سوال نه پيدا کيږي. دغه ډول مفروضې مازي د تخيل الوت باله سي. د پيغمبرﷺ شخصيت چي د هغه پر اصحابو او ښځينه صحابياتو کوم پياوړي اغېزي غورځولي دي د انساني تاريخ يو ښکاره حقيقت دی چي له شواهدو يې تاريخ ډک دی. آيا دا تصور کېدای سي چي داسي وګړي چي د پيغمبرﷺ په مازي اشاره تر ځان او مال تېرېدو ته چمتو وه، د هغه په ويناوو کي چل وتې وکړي. آيا پيغمبرﷺ دا نه دي ويلي:

«مَنْ كذَبَ عَلَيَ مُتَعَمِداً فَلْيَتَبَوَأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَارِ» (صحيح البخاري، العلم، باب اثم من كذب على النبيﷺ، ۱۱۰ حديث).

ژباړه: څوک چي په قصد او پوهه سره پر ما باندي درواغ وتړي نو خپل د ناستي ځای دي په دوږخ کي جوړ کړي.

اصحابو کرامورضي الله عنهم ته خو دا خبره ډېره ښه معلومه وه چي حضرت محمدﷺ د لوی څښتن جل جلاله استازی دی او د هغهﷺ پر هره خبره یې بشپړ ایمان درلود، نو آیا له اروايي نظره دا کېدای سي چي هغوی له دې څرګند حکمه څخه سر وغړوي؟

د جنايي محاکمې په بهير کي د قاضي په مخ کي تر ټولو لومړی سوال داوي چي د دې جرم له ترسره کېدو څخه ګټه چاته رسېدلې ده؟ دغه عدلي اصول د احاديثو په هکله هم غوره کېدای سي. له هغو رواياتو پرته چي په مستقيمه توګه د ځينو افرادو يا ډلو په فضايلو اړه لري او د هغو په جعلي توب کي څه شک او شبهه نسته او يا محدثينو کرامو مسترد کړي دي، د پيغمبرﷺ تر وفات وروسته په لومړۍ پېړۍ کي د بېلابېلو ډلو د سياسي ادعاوو د ناسمو روايتونو په بيانولو کي د کوم ځانګړي فرد کومه ګټه نه تر سترګو کيږي. د دې شونتيا په پام کي نيولو سره چي ښايي ځيني احاديث د شخصي ګټي لپاره جوړ سوي وي، سترو محدثينو، لکه بخاري او مسلم رحمهما الله د ډله ييز سياست په اړه روايات نه دي منلي. نو کوم احاديث چي صحيح ګڼل سوي دي پر هغو دا شبهه نه سي کېدلای چي له هغو څخه به چا ته څه شخصي ګټه رسېدلې وي.

د حديث له صحت څخه د انکار يو دليل دا کېدای سي چي ښايي کوم صحابي چي د پيغمبرﷺ له خولې کوم حديث اورېدلی وي يا په را وروسته روايت کوونکو کي کوم يو د پيغمبرﷺ په الفاظو په درسته توګه نه وي پوهېدلی يا يې حافظې مرسته نه وي ورسره کړې

ياکوم بل اروايـي لامـل وي چـي لـه املـه يـې تېروتنـه سـوې وي، پـه داسي حال کي چي هغه له آره رشتينی وي، خو داخلي يعنـي اروايـي شواهد وايي چي له دغه ډوله د کومي لويي تېروتني امکـان نسـته، پـه تېره له اصحابو کرامو رضي الله عنهم څخه د دغسي غلطيو احتمال ممکن نه دی. کوم خلک چي د پيغمبر ﷺ په صحبت او ملګرتيا کي اوسېدلي دي د هغو په نزد د پيغمبر ﷺ هر قول او فعل ستر اهميت درلود. يوازي لـه دې امله نه وو چي پر هغو باندي د پيغمبر ﷺ شخصيت ډېر ژور اغېز اچولی وو، بلکي دوی د لوی څښتن پر دې فرمان بانـدي پـوخ يقـين او ايمان درلود چي دوی خپل ژوند د رسول ﷺ د لارښـوونو او کړنـو سـره سـم سـمبال کـړي. لـه دې املـه دغـو وګـړو د رسـول اللـه ﷺ لارښوونو ته په سرسري توګه نه کتل، لکه چي دوی د رسـول ﷺ هـره خبر او کړنه د ډېر و تکليفونو په ګاللو سره يادول او په خپلـو حـافظو کي يې ساتل. ويل سوي دي چي اصحاب کرام به دوه دوه تنه سـوي وه، يو به په نوبت سره د پيغمبر ﷺ په صحبت او مجلس کي اوسېدی او بل صحابي به خپلي ورځنيۍ چاري او نـور تـر سـره کـول. پـه دې توګه چي به بل صحابي له پيغمبر ﷺ څخه څه خبري اورېـدلي وې او د هغه کړني به يې ليدلي وې، هغه به يې خپـل ملګـري تـه کـټ مـټ بيـانولې. لـه دې څـه څرګنـدېږي چـي دوی د پيغمبـر ﷺ پـه اقوالـو او افعالو باندي د پوهېدو په هکله څونه جدي وه. دوی به کوښښ کـاوه چي د رسول ﷺ د کوم قول او فعل له اورېدو او ليدو څخه بې برخـي نه سي. په دغسي حالاتو کي ممکنه نه ده چي دوی دي د حـديث لـه اصلي الفاظو څخه غفلت کړی وي. که دا ممکنه وه چي پـه سـلګونو اصـحاب د درسـت قـرآن کـريم الفـاظ، د هغـو هجـاوي او بيـل بيـل

جزئيات په خپلو حافظو کي خوندي کولای سولای، نو دا هم ممکنه وه چي صحابهٔ کرامؓ د پیغمبرﷺ اقوال په خپلو حافظو کي داسي خوندي کړای سي چي نه کوم لفظ پکښي زيات وي نه کم.

پر دې سربېره هغه روايات په بشپړه توګه صحيح ګڼل کيږي چي د بېلو بېلو آزادو ذرايعو لخوا روايت سوي وي او د روايت کوونکو لړی يې نه وي قطع سوې. يوازي دغونه هم نه ده، د حديث د صحت لپاره دا هم اړينه ده چي د هغه په هر پړاو کي لږ تر لږه دوه شاهدان وي او په کوم پړاو کي يې يو راوي نه وي، بلکي حديث د صحابي او محدث په منځ کي د راويانو له درو نسلونو څخه روايت سوی وي. چي عملاً د دغسي روايت کوونکو شمېر شلو ته رسيږي يا تر هغو لا هم زيات وي. د دې ټولو خبرو سره سره هيڅ يو مسلمان داسي نه ګڼي چي د قرآن کريم د صحت او صداقت چي کوم معيار دی، هغه دي د احاديثو معيار هم وي. دغه لامل دی چي په هيڅ يوه زمانه کي د احاديثو د څېړلو او کره کولو کار نه دی بند سوی. د موضوعي روايتونو د شتون حقيقت هيڅکله هم د محدثينو له سترګو نه دی نهام سوی، که څه هم ځيني غير مسلمانان او ان ځيني مسلمانان هم داسي پوهېدلي دي چي د درايت کار بند سوی دی. د دې بر عکس د احاديثو د جرح او تعديل فن د دې لپاره ايجاد سوی دی چي صحيح او موضوع احاديث سره بېل سي امام بخاري، امام مسلم او نور محدثين (رحمهم الله) د دغه کره کتنيز کړنددود يېبري (پيداوار) باله سي. د درواغو احاديث د احاديثو د دې درست نظام په خلاف هيڅ هم نه جوتوي، لکه چي د الف ليلة وليلة کتاب د خيالي کيسو له امله د دغه دور رښتيني تاريخي حقايق درواغ نه سي

ګڼل کېدلای. تر اوسه پورې هیڅ یوه نیوکه کوونکې په منظمه طریقه دا زبات نه کړای سوه چې ثقه محدثینو چې د جرح او تعدیل د اصولو له مخې کوم احادیث غوره کړي دي، جعلي دي. د صحیحو روایتونو بشپړ یا جزوي انکار مازې جذباتي مسئله ده او د بې پلوو ساینسي څېړنو په مټ د دغه انکار په پلوي کوم دلیل نه سي وړاندې کېدلای. خو زموږ په پېر کې د ډېرو مسلمانانو لخوا د احادیثو د انکار محرک په آسانې سره معلومېدلای سي. د دې لامل دادی چې ممکنه نه ده چې زموږ اوسنی مخ پر له منځه تلونکی ژوند او اند دود د نبوي سنتو سره سم او برابر سي. د احادیثو جعلي ناقدین د خپلو دې کمزوریو او د چاپېریال د ورانیو د جواز په لټه کې د سنتو له پیروۍ څخه د مخ اړولو کوښښ کوي، څو د قرآن کریم تعلیمات د خپلو تمایلاتو او ذهن سره سم تعبیر کړای سي او دغه راز د ژوندانه د اخلاقي او عملي، انفرادي او ټولنیزي کړنلارې په توګه د اسلام ستر مقام ته تاوان ورسوي.

دغه مهال چې په مسلمانو هیوادونو کې د لوېدیز تهذیب اغېزې مخ پر زیاتېدو دي نو د تش په نامه مسلمانو پوهانو په منفي چلند کې یو بل محرک هم زیات سوی دی. دا شونې نه ده چې د رسولﷺ پر سنتو هم عمل وسي او د دې سره یوځای لوېدیز ژوند دود هم غوره سي. خو په اوسني توکم کې ډېر مسلمانان د لوېدیځ هر څه خوښوي او د بهرني تهذیب یوازې د دې لپاره پالنه او پرستش کوي چې بهرنی دی؛ ځواکمن دی او له مادي پلوه ډېر اغېزمن دی. دا چې اوسمهال د احادیثو او سنتو بشپړ انتظام او اهتمام دونه ناخوښه سوی دی تر ټولو ستر لامل یې همدغه لوېدیځ پالنه ده. د رسول

اللهﷺ سنت د لوېديز تهذيب د پردې تر شا د بنسټيزو تصوراتو دونه زيات ضد دي چي کوم وګړي چي د لوېديز تهذيب په جادو اخته سوي دي د هغو لپاره له دې پرته بله چاره نسته چي سنت نا اړين شی وبولي او ووايي چي دا د اسلام لازمي برخه نه ده، ځکه چي «د سنتو بنسټ پر نامعتبرو روايتونو» ولاړ دی. تر دې وروسته دوی ته د قرآن کريم د تعليماتو په کښته پورته کولو سره، د هغه د لوېديز تهذيب د روح سره سم وړاندي کول آسانه کيږي.

د رسول اللهﷺ د سنتو د قانوني جواز سره سره چي په تاريخي لحاظ يې انحصار پر احاديثو باندي دی، د هغو د داخلي او روحاني جواز سوال هم پيدا کيږي. په صحيحو معنا وو د اسلامي ژوند تېرولو لپاره پر سنتو عمل کول څله اړين باله سي؟ آيا د اسلام پر حقانيت باندي د پوهېدو لپاره کومه بله لار نسته چي د رسول اللهﷺ د حسنه اسوې په رڼا کي د اوډل سوو افعالو او اعمالو او اوامرو او نواهيو پر ستر نظام عمل وسي؟ بې شکه چي رسول اللهﷺ تر ټولو ستر انسان وو، خو آيا دا اړينه ده چي د هغه د ژوند پر هر اړخ عمل وسي، ځکه په دې توګه د انسان انفرادي آزادي تاواني کيږي؟

دا يو ډېر خوشي چټي دليل دی کوم چي د اسلام ناپوه دوستان يې وړاندي کوي. دوی ادعا کوي چي پر سنتو باندي عمل لازمي ګڼل د مسلمانانو د زوال يو لوی لامل دی، ځکه چي په دې توګه د انساني کړنو آزادي او د ټولني فطري ترقي متاثره کيږي. د دې سوال جواب د اسلام د راتلونکي لپاره ډېر ستر ارزښت لري. د سنتو په اړه زموږ چلند د اسلام په اړه زموږ چلند ټاکي.

موږ ډېر پر ځای وياړو چي اسلام د مذهب په توګه پر جامدو تصوفي تصوراتو نه دی ولاړ. ځکه چي پر تصوفو باندي د دلايلو پر بنسټ نيوکه کېدای سي. له دې امله موږ نه يوازي دا چي دا حق لرو چي وپوهېږو چي پر سنتو باندي عمل لازم ګڼل سوی دی، بلکي موږ په دې هم بايد پوه سو چي دا ولي لازم ګڼل سوی دی؟

اسلام د ژوند په ټولو اړخونو کي همږغي او همرنګي غواړي. په دې موخه اسلام د ژوند د ټولو ګوښو لپاره داسي لارښووني برابري کړي دي. چي په هغو کي نه څه زياتېدلای سي او نه څه ځني کمېدلای سي. په اسلام کي هرلور ته لاس اچول ځای نه لري. قرآن کريم او رسول اللهﷺ چي کوم تعليم راکړی دی موږ ته ښايي چي هغه په بشپړه توګه اختيار کړو، که نه هغه به خپل قدر او قيمت له لاسه ورکړي. دا سي ګڼل اساساً غلط فهمي ده چي څنګه چي اسلام د عقل مذهب دی، نو هغه هر چاته د هغه د خوښي سره سم د تعليماتو د غوره کولو حق ورکوي. د دې ادعا بنسټ د عقل پالني پر عامه تېروتنه ولاړ دی.

د هري زمانې په فلسفه کي دغه خبر په بشپړه توګه منل سوې ده چي د عقل او عقل پالني تر منځ لوی بېلېدونکی خليج رامنځته سوی دی. ترکومه چي په مذهبي تعليماتو اړه لري، عقل هغه تر واک لاندي راولي. دې ته پام د هغه دنده ده چي پر انساني ذهن باندي داسي کومه خبر مسلطه نه سي چي هغه يې د ذهني شعبده بازۍ له مرستي پرته په آساني سره نه سي منلای. ترکومه ځايه چي په اسلام اړه لري، له کوم تعصبه پرته ويل کېدلای سي چي عقل په پلاوو پلاوو د اسلام په پلوي پرېکړه کړې ده. د دې معنا داده چي د

چا چي د قرآن سره اړيکي ټينګي وي هغه ته لازمه ده د اسلام تعليمات هم ومني. دا د مزاج، چاپېريال او روحاني بصيرت معامله ده. يوه خبر په يقيني ډول کېدلای سي چي هيڅ کوم غير متعصب شخص دا نه سي ويلای چي په قرآن کريم کي کومه خبر د عقل خلاف ده. بې شکه چي په هغه کي ځيني داسي تصورات سته چي د ځينو د پوهي او ادراک تر پولي لوړ دي، خو داسي خبر پکښي نسته چي د انسان د عقل او پوهي مخالفه وي.

لکه چي موږ وليدل په مذهبي چارو کي د عقل کار کابو کول دي. دا داسي يوه آله ده چي موږ ته د «هو» يا «نه» جواب راکوي. خو د تش په نامه عقل پالني په اړه دا خبر درسته نه ده، ځکه دا د خپل ځان ترکابو کولو نه محدودېږي، بلکي په ټوپ وهلو سره د قياس او ګومان ډګر ته رسيږي. دا دليل نه مني او نه د خالص عقل غوندي بې پرې وي، بلکي ډېره نفساني او مزاجي وي. د عقل خپلي پولي معلومي وي. خو د سطحي «عقل پالني» دا ادعا بېخي له مبالغې ډکه ده چي هغه د نړۍ له ټولو پټو رازونو او رموزونو څخه خبره ده او په خپله دايره کي ټولي غوټي پرانيستلای سي. د مذهب په هکله عقل پالنه دا نه مني چي ځيني چاري په بېړنۍ يا مستقله توګه له انساني فهمه لوړي وي. ان هغه دا غير منطقي خبري هم کوي چي ساينس ټولي نه حلېدونکي چاري حلولای سي، او له ټولو رموزونو او اسرارو خبرېدلای سي.

دې ډول په تصور کي نه راتلونکي عقل پالني ته ډېر اهميت ورکول له هغو اسبابو څخه دي چي له امله يې د نوي پېر ډېر مسلمانان د پيغمبرﷺ د لارښوونو له منلو څخه ډډه کوي، خو نن

کانټ ته ضرورت نسته چي ووايي انساني فهم په خپلو امکاناتو کي ډېر محدود دی. زموږ دماغ د خپل نوعيت او جوړښت په اعتبار د کُل په تصور نه سي پوهېدلای. موږ يوازي د هغه په تفصيلاتو پوهېدلای سو. موږ نه پوهيږو چي د لامحدوديت او يا همېشه توب معنا څه ده. موږ ان دغونه نه پوهيږو چي ژوند څه دی. پرآسماني لارښوونو باندي د ولاړ مذهب په مسايلو کي موږ داسي لارښود ته ضرورت لرو چي دماغ يې له عامو عقلي وړتياوو او عامي نفسي عقل پالني څخه لوړ وي. د دې معنا داده چي موږ ته د داسي يوه لارښود اړتيا ده چي له لوړه لوري لارښوونه ترلاسه کوي.

په بله وينا موږ يوه پيغمبر (ﷺ) ته اړتيا لرو. که موږ پر دې ايمان لرو چي قرآن کريم د څښتن تعالی کلام دی او حضرت محمدﷺ د لوی څښتن رسول دی، نو پر موږ باندي په اخلاقي، بلکي عقلي توګه د هغه متابعت لازم دی. د دې معنا دا نه ده چي موږ د خپل استدلال له ځواک څخه لاس پرېولو، بلکي د دې معنا داده چي موږ بايد د استدلال دغه ځواک د خپل ډېر ښه علم او لياقت سره سم استعمال کړو. موږ بايد د رسولﷺ د احکامو موخه او حکمت معلوم کړو. که موږ د هغه د احکامو په حکمت او مصلحت نه پوهيږو بيا هم بايد دغه احکام عملي کړو.

زه دغه خبر د يوه سرتيري په مثال څرګندوم کوم چي د هغه بولندوی (قوماندان) د يوه مهم مورچل د نيولو امر ورته کړی وي. ښه سرتيری دغه حکم سمدستي عملي کوي. که د حکم د عملي کولو پر مهال د هغه په مقصد پوه سو نو دا به سرتيري او د هغه د مسلک پر مختګ ته ډېر ښه وي، خو که د بولندوی (قوماندان) د حکم په

پټ حکمت پوه نه سو نو هغه ته اجازه نسته چي په حکم پابند ونه اوسي يا پر هغه باندي عمل او کړنه وځنډوي. موږ مسلمانان ايمان لرو چي رسول اللهﷺ ډېر ښه قوماندان دی. بل هيڅوک تر ده ښه او اعلی سر قوماندان نه سي کېدای. زموږ باور دی چي هغه په مذهب او د هغه په روحاني او ټولنيزو اړخونو تر موږ ډېر زيات پوهيږي. د هغه د اوامرو او نواهيو ترشا داسي ژور حکمتونه او مصلحتونه پراته دي چي د هغه په نزد د انسان د روحي او اجتماعي ښېګڼو لپاره لازمي دي.

ځيني وختونه دغه حکمتونه څرګند وي او ځيني وختونه د عام وګړي ناروزل سوي سترګي هغه نه سي ليدلای. ځيني وختونه موږ د پيغمبرﷺ د حکم په ژور حکمت پوهيږو او کله ناکله موږ يوازي د هغه ظاهري مقصد ته رسېدلای سو. په هر صورت موږ ته د پيغمبرﷺ د حکم منل لازم دي په دې شرط چي د حکم صحت په بشپړه توګه څرګند وي.

پردې سر بېره کومه بله خبر څه ارزښت نه لري. د پيغمبرﷺ په احکامو کي ډېری زيات مهم دي او نور د کم ارزښت درلودونکي دي، له دې پلوه موږ بايد ډېرو مهمو احکامو ته پر نورو احکامو باندي ترجيح ورکړو. موږ په دې وينا سره چي دا موږ ته «نا اړين» دی د کوم حکم د مستردولو واک نه لرو. لکه چي په قرآن کريم کي د پيغمبرﷺ په هکله ويل سوي دي:

﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلۡهَوَىٰٓ ٣﴾ [النجم: ٣].

ژباړه: «هغه له خپلي خوښي څخه کومه خبر نه کوی».

يعني هغه يوازي په هغه صورت کي خبري کوي چي اړتيا يې وي او هغه د لوی څښتن د وحيو په رڼا کي خبري کوي. له دې امله پر موږ باندي د پيغمبرﷺ متابعت لازميږي، څو موږ د هغه پر احکامو باندي د هغو د روح او ظاهر سره سم عمل وکړو، که چيري موږ د خپل اسلام په هکله رشتياني يو نو موږ ته نه ښايي چي د اسلام په هکله دا ګومان وکړو چي دا هم د نورو نظريو غوندي يوه نظريه ده. بلکي موږ داسي پوهيږو چي دا يوازي ځانتنۍ نظريه ده او کومي هستۍ چي دغه يوازنۍ نظريه تر موږ پوري رسولې ده د نورو لارښوونکو غوندي يو لارښود نه دی، بلکي دی هم يوازنی لارښود دی. په ټولو احکامو کي د هغهﷺ متابعت کول پر اسلام عمل دی او سنت پريښوول د اسلام له حقيقت څخه مخ اړول دي.

## پايله

ما په مخکنيو بابونو کي د دې خبري کولو کوښښ وکړ چي د لوېديز تهذيب له خپلولو او هضمولو څخه اسلام ته څه ګټه نه رسيږي. خو خواشينوونکی حالت دادی چي د اسلامي نړۍ سره د مقاومت لپاره څه ځواک نه دی پاته. د هغه د ثقافتي شتون څه پاتي شوني د لوېديزو اندونو او دودونو تر فشار لاندي د مځکي سره برابريږي. اوس داسي ښکاري چي مسلمان په دې صورت حال راضي دی، خو د ولسونو په ژوند او ثقافت کي د دې معنا مړينه ده.

د اسلام ربړه څه ده؟ آيا رشتيا اسلام ويشتل سوی کارتوس دی، لکه څنګه چي زموږ مخالفين او زموږ د خپلو ليکو ماته خوړلي

عناصر موږ ته یقین او قناعت راکوي؟ آیا اسلام خپل ګټورتوب له لاسه ورکړی دی او چي څه یې نړۍ ته ورکول هغه یې ورکړي دي؟

تاریخ موږ ته وایي چي انساني فرهنګونه ساکښانو ته ورته دي. دغه فرهنګونه له ټولو هغو پړاوونو څخه تېرېږي چي ساکښان ځني تیرېږي. دغه فرهنګونه زیږي، ځوانیږي، پاخه عمر ته رسیږي او بالاخر له منځه ځي او د وښو غوندي په وچېدو سره ختمیږي. ثقافتونه هم د خپل عمر تر بشپړېدو وروسته د خزان بادونه د مړیني کومي ته سپاري او ځای یې د نورو فرهنګونو را سپنلو ته خالي کوي.

نو آیا د اسلام خبر هم دغسي ده؟ په سر سري کتو دغه چاره دغسي ښکاري. بې شکه چي د اسلامي ثقافت پیل ډېر پرتمین وو. دغه ثقافت خپلي بشپړتیا ته ورسېد. په هغه کي په انسانانو کي د عمل او سرښندني د خوځښت د پیدا کولو ځواک وو. هغه ولسونه بدل کړل او د مځکي د کُرې تقدیر ته یې هم بدلون ورکړ. خو له بده مرغه په راوروسته کي په هغه کي جمود راغی او یوازي د الفاظو د ظاهري جامې غوندي پاته سو. اوس موږ په ډېره نهیلۍ سره د هغه ځوړتیا او له منځه تله مشاهده کوو. خو آیا خبر پر دې ځای ختمه سوه؟

که موږ باور لرو چي اسلام د نورو ثقافتونو غوندي ثقافت نه دی او یوازي د انساني افکارو او کوښښونو په پایله کي نه دی رامنځته سوی، بلکي دا یو داسي ځواک دی چي خپله ثقافت زېږوي، دا د لوی څښتن یو داسي قانون دی چي په هرځای او هر مهال کي باید انسانان د هغه پابند وي، نو بیا صورت حال بالکل بل ډول کیږي. که اسلامي ثقافت د لوی څښتن د قانون د پیروۍ پایله ده او وه، نو موږ

هیڅکه دا نه سو منلای چي دا هم د نورو ثقافتونو غوندي د زمانې د ګرځېدو او کوم ځانګړي پېر بندي دی. په ظاهره چي د اسلام زوال تر سترګو کيږي هغه په حقيقت کي بل څه نه دي بيله دې چي زموږ زړونه مړه سوي دي، زموږ پر زړونو باندي مهرونه لګول سوي دي. په دې هکله موږ غيبي آواز نه سو اورېدلای. خو په اوسنيو حالاتو کي داسي کومي نخښي نه تر سترګو کيږي چي ځني معلومه سي چي انسانيت تر اسلام وړاندي تللی دی، ځکه چي انسانيت تر اسلام غوره اخلاقي نظام نه سي رامنځته کولای. انسانيت د عمل په ډګر کي د انساني ورورولۍ هغه تصور هم نه سي وړاندي کولای چي اسلام د امت په بڼه وړاندي کړی دی. انسانيت کومه داسي ټولنيزه ټولګه هم جوړه نه کړای سوه چي په هغې کي د انسانانو په منځ کي جګړې او شخړي په داسي ښه توګه لږ تر لږي کچي ته راټيټي کړي په کومه غوره توګه چي د اسلام ټولنيز نظام را ټيټي کړي دي. انسانيت په انساني پت او عزت، د امنيت او سلامتۍ په احساس، روحاني هيلو او د هغو په خوښيو کي هم کوم زياتوب رامنځته نه کړای سو.

په دې ټولو چارو کي د انساني توکم اوسني برياليتوبونه د اسلامي کړنلاري تر برياليتوبو ډېر لږ دي. بيانو اسلام ته په کوم جواز يو له کاره لوېدلی نظام ويل کيږي؟ مازي له دې امله چي د اسلام بنسټونه خالص مذهبي دي او اوس مذهبي تمايلات له موده لوېدلي دي او دغه فېشن نه دی پاته؟ خو که موږ دا وګورو چي د مذهب پر بنسټ ولاړ کوم نظام، ډېر جامع، ډېر پياوړی او د انساني روحياتو سره بالکل سم، د ژوندانه کوم عملي نظام وړاندي کوي او تر اوسه چي

انساني ذهن د سمونونو په مټ کوم نظام وړاندي کړی دی هغه تر دغه د مذهب پر بنسټ ولاړ نظام غوره نه دی نو آیا دا د مذهب د غوره توب په پلوي ډېر ښه دلیل نه بلل کیږي؟

انسان چي د اسلام له برکته کوم مثبت بریالیتوبونه تر لاسه کړي دي له هغو څخه د اسلام حقانیت ثابت سوی دی. پر دې سربېره اسلام چي ډېر دمخه د انساني پرمختګ کومي ورانی، تېروتني او کمزوری په ګوته کړي وې، انسانیت په هغو ورانیو وروسته پوه سو، له دې پلوه هم د اسلام حقانیت جوت سوی دی. له مذهبي عقایدو قطع نظر پر خالصو عقلي بنسټونو باندي هم هر چا ته د اسلام د عملي لارښوونو د پیروی بشپړ جواز موجود دی.

که موږ خپل تهذیب او ثقافت ته له دغه نقطهٔ نظره وګورو کوم چي لوړ بیان سو نو موږ لازماً دې پایلي ته رسیږو چي د هغه بیا احیا ممکنه ده. موږ د اسلام اصلاح کولو ته اړتیا نه لرو، لکه چي ځیني مسلمانان فکر کوي، ځکه اسلام له هره پلوه بشپړ او مکمل دین دی. موږ چي د کوم څه اصلاح ته اړتیا لرو هغه د مذهب په اړه زموږ چلند دی. کوم چي زموږ تنبلي، ځان غولونه، لنډ فکري او بې پروایي ده. لنډه دا چي موږ د خپلو ورانیو سمون ته اړتیا لرو نه په اسلام پوري د تړلو سوو فرضي خرابیو لیري کولو ته. د اسلام د بیا را ژوندي کولو لپاره موږ باید له بهر څخه د نوو اصولو په لټه کي نه سو، بلکي موږ ته ښایي چي د اسلام پر هغو مقدسو پخوانیو اصولو (د مسلمانانو د برم او پرتم د عصر پر اصولو) عمل وکړو چي موږ پرې ایښي دي. موږ له بهرنیو ثقافتونو څخه هرومرو باید ځیني خبري زده کړو، خو موږ بشپړ اسلامي نظام په کوم بل غیر اسلامي

نظام نه سو بدلولای. دغه نظام له ختيځ څخه په خواست واخيستل سي که له لوېديځ څخه.

په اسلام کي د يوې روحاني او ټولنيزي ادارې په څېر د «ښه کېدو» ګنجايش نسته. په دغسي حالاتو کي د بهرنيو ثقافتي اغېزو په ذريعه د اسلام په تصوراتو يا د هغه په ټولنيزه ټولګه کي کوم بدلون راوستل په حقيقت کي پر شا تګ او پوپنا کېدل دي، چي ډېري خواشينوونکي پايلي به ولري. بدلون بايد هرومرو رامنځته سي، خو له دننه څخه او د اسلام پر لور، نه له اسلام څخه په ليري کېدو کي د کومي بلي لاري په اخيستو سره.

د دې ټولو خبرو سره سره موږ بايد خپل ځانونه ونه غولوو. موږ پوهيږو چي زموږ نړۍ يعني اسلامي نړۍ تقريباً خپل آزاد ثقافتي عنصر ورک کړی دی. زه دلته د مسلمانانو د سياسي زوال خبري نه کوم زموږ د موجودو حالاتو د ورانۍ ډېر مهم اظهار په عقلي او ټولنيزو کړيو کي موندل کيږي چي لامل يې زموږ د يقين او زموږ د ذهني ويښتيا ورکېده او زموږ د ټولنيزي ادارې انتشار او پر له پاشل دي. اوسمهال چي موږ دکوم ثقافتي او ټولنيز انتشار له پېر څخه تيرېږو له هغه څخه په ډېره ښکاره توګه په ډاګه کيږي چي هغه متوازن ځواک ختم سوی دی چي يو مهال د اسلامي نړۍ د عظمت او سترتوب سبب وو. څوک نه پوهيږي چي موږ دکوم ثقافتي برخليک پر لور وړاندي درومو. په موږ کي ذهني جرأت او مړانه نه ده پاته او نه په موږ کي زموږ د مذهب او ټولني د پوپنا کوونکو بهرنيو اغېزو د سيلاب سره د ټينګار او مقابلې يا له هغه څخه د ژغورني عزم موجود دی. موږ هغه ډېر ښه اخلاقي تعليمات شاته

غورځولي دي له کومو سره چې نړۍ یو وخت آشنا وه. موږ خپله عقیده پخپله دروغجنه کوو، خو دغه عقیده زموږ اولنو ته یو پرله غښتې او کارنده ځواک وو. موږ په خپله دغه عقیده شرمیږو، خو زموږ اولنو فخر په کاوه. موږ تنګ نظره او خود غرضه یو، خو زموږ اولني د لویو زړونو خاوندان او د نړۍ په وړاندې د پرانیستي کتاب غوندې وه. موږ له دننه خالي یو خو زموږ اولني له دننه غښتلي او پیاوړي وه.

هر د اند او پوهې څښتن مسلمان په دې غمیزه ډېر ښه پوه دی. هر چا په دې هکله خبرې په پلاوو پلاوو اورېدلي دي، نو آیا د هغو په بیا ځلي ویلو کې څه ګټه سته؟ زما خیال دادی چې په دې کې ګټه سته، ځکه له دې پرته زموږ د خپلو تېتیاوو له خجالت څخه د راوتلو بله لار نسته، څو پر دې شرم باندې اعتراف وسي او د هغه د تریخوالي د څکلولپاره شپه او ورځ هغه خپلې مخې ته کښېږدو تر څو چې موږ د هغه د اسبابو د لیرې کولو هوډ کوو. له ځانه د یوه تریخ او درانه حقیقت پټول څه ګټه نه لري، او دا ځان غولونه هم ګټه نه لري چې اسلامي نړۍ په خپلو اسلامي بوختیاوو کې مخ په وړاندې روانه ده او په څلورو وچو کې اسلامي تبلیغات کیږي او لوېدیز عوام د اسلام پر ښېګڼو اعتراف کوي. د دې ټولو خبرو نمایشي څرګندول څه ګټه نه کوي، او په داسې غولوونکو دلایلو د خپل ځان په ډاډه کولو هم څه نه جوړیږي چې یاره موږ دونه ډېر اسکېرلي او ذلیل سوي هم نه یو. په داسې حال کې چې په موږ نور د اسکېرلي ورځې وس نه رسیږي.

ښه نو زموږ برخلیک باید دغه وي؟

نه! داسي نه سي کېداى! ځکه په موږ کي د بيا راژوندي کېدو هيلي او ولولې موجودي دي. په ډېر وګړو کي دا هيلي موجودي دي چي موږ بايد خپل حالت ته د ښه توب پر لور بدلون ورکړو. دا موږ هيله من کوي چي تر اوسه لا هرڅه نه دي ختم سوي. د احيا لار موجوده ده. دغه لار هر د سترګو خاوند ته ښه صافه په نظر ورځي.

د لومړي ګام په توګه موږ ته په کار ده چي موږ د اسلام په اړه د خجالت احساس او معذرت غوښتونکی چلند پرېږدو، ځکه د دې معنا ذهني ماته او خپلو شکونو او شبهو ته چوخه اغوستل دي

په دوهم ګام کي موږ بايد په شعوري توګه د خپل پيغمبرﷺ په سنتو عمل وکړو ځکه چي سنت د اسلامي تعليماتو له عملي بڼې څخه پرته بل څه نه دي. که موږ سنت په خپل عملي ژوند کي غوره کړو موږ په آساني سره دا معلومولای سو چي د لوېديز فرهنګ کومه خبر قبلېدلای سي او کومه يې ردېدلای سي. د پرديو عقلي معيارونو په وړاندي په بزدلي سره د اسلام د را نسکورولو پر ځای موږ ته ښايي چي يو ځل بيا د اسلام هغه معيار جوړ کړو چي پر مِحک يې نړۍ کره کړلای سي.

خو دا خبر هم پر ځای ده چي نن مهال د اسلام موخي په نا مناسبه او غلطه توګه ښوول کيږي. که مسلمان بيرته اصل ماخذ ته نه ور ګرځي او خپل دغه ډول تصورات نه سموي، نو هغه د اسلام او اسلامي چارو مسخ سوی انځور په جزوي توګه وړاندي کوي. د اسلام ظاهرپالونکي علما چي کوم نظريات وړاندي کوي هغه داسي تصورات دي چي د عملي کېدو وړ نه دي. کوم چي د اسلام له دوديزو تعبيراتو پرته بل څه نه دي، چي بنسټ يې پر نوو افلاطوني

منطقو ولاړ دی، چې کېدای سي «نوي» وي؛ يعنې په دوهمه او دريمه هجري پېړۍ کې «نوي»؛ يعني د عملي کېدو وړ وي، خو اوس له کاره لوېدلي دي. ډېر هغه مسلمانان چې د لوېديزو کړښو سره سم يې پوهه ترلاسه کړې ده له عربي سره نابلده سوي دي. او د فقهي له اسرارو او رموزو څخه هم نه دي خبر له دې امله دوی په طبيعي توګه د زړو او داخلي تعبيرونو منلو ته مايل دي کوم چې د شارع د منشا او موخي سره سم نه دي او د هغو د ناسم والي له امله چې هغوی نهيلي کيږي نو ډېری يې د اسلامي شريعت له منلو څخه انکار کوي. ځکه نو د دې لپاره چې يو ځل بيا د مسلمانانو په ژوند کې شريعت تخليقي ځواک جوړ کړو موږ ته په کار ده چې د اصل ماخذ سره سم اسلامي تصورات بيا راژوندي کړو او هغه له هغو دوديزو تعبيراتو څخه آزاد کړو چې له پېړيو پېړيو راغونډ سوي دي او د اوسمهال د ننګونو (چيلنجونو) مقابله نه سي کولای. د دې کوښښونو په پايله کې داسي نوې فقه رامنځته کېدای سي چې د اسلام د دوو ماخذونو سره مطابقه وي. دغه دوه ماخذه قرآن کريم او د رسول الله ﷺ سنت دي. دغسي فقه د اوسمهال غوښتني پوره کولای سي، لکه چې پخوانۍ فقهي د هغه پېر غوښتني پوره کړې وې، او د لومړنيو پېړيو د ژوند د حالاتو لارښوونه يې کول.

خو که موږ خپل له لاسه وتلی باور يو ځل بيا په لاس راوړلای سو، نو يو ځل بيا به د وړاندي تللو هيلي مونده سي. دغه موخه موږ د خپلو ټولنيزو ادارو په پوپنا کولو سره هيڅکله هم په لاس نه سو راوړلای او نه يې د بهرني تهذيب په تقليد حاصلولای سو. کوم چې نه يوازې له تاريخي يا جغرافيوي پلوه بهرنی تهذيب باله سي، بلکې

له روحاني پلوه هم پردی دی. قرآن کريم موږ ته دغه لار را ښوولې ده:

﴿لَّقَدۡ كَانَ لَكُمۡ فِي رَسُولِ ٱللَّهِ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ لِّمَن كَانَ يَرۡجُواْ ٱللَّهَ وَٱلۡيَوۡمَ ٱلۡأٓخِرَ﴾ [الأحزاب: ۲۱].

ژباړه: «ستاسي لپاره د رسول الله د اسوهٔ حسنه (دخورا غوري نمونې) پيروي (کول) ډېر ښه دي؛ (يعني) هغه چاته چي لوی څښتن (ته د ورتلو) او د قيامت د ورځي (د راتلو) هيله من وي».

پای.

## د دې کتاب د ځينو مشکلو لغاتو او اصطلاحاتو معناوې

آر: اصل، آرونه: اصول.

اسماء الرجال: دا هغه علم دی چي د احاديثو د روايت کوونکو د نومونو، کنيو، القابو او په علم او تقوا کي د هغو د مراتبو او د ژوندانه د حالاتو او داسي نورو په هکله د هر اړخيزو څېړنو او پلټنو په موخه رامنځته سوی دی.

اډانه: اداره، تشکيل، ډانچه،.چارچوب، چوکاټ.

ارتکاز: متمرکزوالی، ثبات او برقراري او يوه شي ته تکيه کول.

بيا ځلي: تکراري، تکرار.

پېر: دور، دوره، مهال.

تخليقيت: له تخليق څخه اخيستل سوی، د پيداکوني او زېږوني اوپيدايش او طبيعت په معنا.

تهذيب: د يوې ټولني د ژوند تېرولو دوديزي لاري چاري، مادي پر مختګ، هځوب، کلتور.

ثقافت: هځوب، کلتور، تهذيب او تمدن.

جاج اخيستل: جايزه اخيستل، ارزونه.

جرح وتعديل: د ا د علم الحديث اړوند يو علم دی. د جرح معنا ده د حديث د روايت کوونکي په هکله د نيمګړتياوو او عيبونو معلومول، او تعديل د روايت کوونکي د ښو اوصافو بيانولو ته وايي.

جمود : پر ځای درېدل، تعطل، جبري معطله کېدل.

چيلنج: (Challenge) ننګونه، د مقابلې او مبارزې لپاره بلنه، اعتراض کول.

ځونه: ځومره، ځونده.

حديث: په لغت کې هرې نوې خبرې او شي ته حديث وايي او د محدثينو په اصطلاح حديث هغه څه ته وايي چې د رسولﷺ قول، فعل او تقرير ته منسوب سي، او د تقرير معنا دا ده چې چا د رسول ﷺ په حضورکې څه کار کړی وي او يا يې څه ويلي وي او د هغهﷺ علم په رسېدلی وي او بد يې نه وي ګڼلي او منع يې نه وي ځنې کړې، بلکې سکوت يې اختيار کړی وي.

ختيځ: شرق، مشرق.

ختيز: شرقي، مشرقي، ختيځ يا شرق ته منسوب.

درايت: د درايت معنا ده معرفت. محدثينو د درايت اصول او قواعد او ضوابط د دې لپاره وضع کړي دي چې د راوي او حديث دواړو په اړه بشپړ معلومات ترلاسه سي د حديث د متن په اړه څېړنه او کره کتنه وسي، چې دې ته داخلي کره کتنه يا د متن کره کتنه هم وايي.

رپی: بيرغ.

سنت: د سنت لفظي معنا سيرت او د غوره طريقې اختيارول ده. په دې کتاب کې د سنتو معنا عبارت ده د رسولﷺ له ټولو قولي او فعلي احکامو څخه

سياق وسباق: د مضمون ربط او تسلسل.

ضخيم: پنډ، غت، د زيات حجم او ضخامت درلودونکی.

غالب: د قالب پښتو سوې بڼه ده.

فرهنګ: هڅوب، کلتور.

کليه: عامه قاعده.

ګومان: د ګمان پښتو سوې بڼه ده.

لوېديځ: غرب، مغرب.

لوېديز: غربي، مغربي، لوېديځ يا غرب ته منسوب.

محدثين: حديث پوهان، د روايت او درايت لـه مخې د احـاديثو په پوهه سمبال او بوخت عالمان چې د زيـاترو روايـت کوونکـو او د هغو په روايتونو خبر وي.

محرک: حرکت، تحريک يا خوځښت ورکوونکی.

محک: هغه توره ډبره چې سره او سپين زر په کره کوي او کـره او کوټه يې په معلوموي.

ولکه: قبضه، کنټرول.

همږغي: همآ هنګي.

# د ژباړن لنډه پېژندنه

**عبد المالك (همت)**

- د پلار نوم يې مولوي عبدالرزاق.
- د کندهار په سوزني کي زېږېدلی.
- د زېږېدو کال يې ۱۳۳۲ لمريز.
- په اسلامي او ټولنيزو علومو کي يې خصوصي زده کړې کړي دي.
- د نجيب د واکمن کېدو په لومړيو کي له هيواده مهاجر سو، لومړي پاکستان او بيا هند ته کډه سو.
- کله چي لا طالبان پر کابل نه وه واکمن سوي تر اوږدې کډوالۍ وروسته هيواد ته راستون سو او تر اوسه په کندهار کي استوګن دی.
- اوس په کور کي د کتابونو په ليکلو بوخت دی.
- تر اوسه يې لاندي آثار ليکلي دي:

۱- د همت چيغه (شعري ټولګه) په ۱۳۸۰ ل. کال خپره سوې ده.

۲- سيد جمال الدين افغاني اند او ژوند (ژباړه) په ۱۳۸۱ ل. کال خپره سوې ده.

۳- زموږ د قبلې تاريخ په ۱۳۸۵. کال دوهم ځل خپور سو.

٤- زموږ د نبي مېنه په ۱۳۸۵ ل. کال خپور سو.

۵- ادب او ادبي کره کتنه په ۱۳۸۵ ل. کال خپور سو.

٦- د مقالې ليکلو اصول په ۱۳۸۵ ل. کال خپور سو.

۷- زموږ صحت او آخرت ته تاواني توکي په۱۳۸۶ل.کال خپور سو.
۸- پښتو معلم الحجاج (ژباړه) په ۱۳۸۶ل.کال خپره سوه.
۹- پوپناسوي ولسونه (ژباړه). په ۱۳۸۶ل.کال خپره سوه.
۱۰- د آسیا نن او سبا په نامه (ژباړه) په ۱۳۸۷ل.کال خپره سوه.
۱۱- زموږ د دښمنانو تور تاريخ او شومي موخي په نامه کتاب په۱۳۸۷ل.کال خپور سو.
۱۲- غرور او د هغه علاج (ژباړه) تر چاپ لاندي ده.
۱۳- د کلمې شريفي حقيقت (ژباړه) تر چاپ لاندي ده.
۱٤- د ښځو د حج او عمرې لارښود تر چاپ لاندي دی.
۱۵- د حق او باطل جګړې. دغه دی ستاسي په لاس کي دی.
۱٦- اسلام د دوه لاري پر سر (ژباړه) داده اوس ستاسي په لاس کي ده

پر دې سربېره يې د هيواد په دننه او دباندي کي بېلي بېلي مقالې هم خبرې سوي دي.

د ليکوال دګرځنده تليفون لمبر: ۰۰۹۳ ۷۰۰۳۰۰۱٦۷

د ليکوال د برېښناليك يا ايمېل آدرس:

**himmat_ afg@yahoo.com**

**لاندي كرښي دي د كتاب دوقايې پر شا چاپ سي.**

## اسلام د دوه لاري پر سر

دا د یوه داسي نوي مسلمان سوي مفكر او عالم ليكنه ده چي د اروپا د ماده پالي او بې لاري ټولني په یوه يهوده كورنۍ كي يې ستركي پرانيستي، خو په تانده ځواني كي د اسلامي نړۍ د سيل او سياحت او د اسلام د رڼې چينې څخه د علمي تندي د ماتېدو نېكمرغي ور په برخه سوه. پای هغه د اسلام سپېڅلی دين ومانه او تر ډېرو څېړنو او مطالعو وروسته يې خپل ټول ژوند د قرآن كريم او نبوي سنتو په تبليغ او خپراوي كي تېر كړ او له اوسنيو بخولو او كړاوونو څخه يې د مسلمانانو د راايستلو په موخه قلم په كار واچاوه.

دغه كتاب د دغي لړۍ يوه كړۍ ده چي په هغه كي نوي مسلمان سوي علامه محمد اسد د لوېديز تهذيب او مسيحيت فكرې تنستې شنلي او د لوېديځ له ړانده تقليد څخه د مسلمانانو د ژغورلو، د اسلامي ټولني د ساتلو، د قرآن او سنتو د لارښوونو په بشپړه توګه د عملي كولو او د لوېديځ د فكري يرغل په وړاندي د معذرت غوښتونكي چلند د پرېښوولو بلنه وركوي.

د قرآن د مفسر علامه محمد اسد د دې ليكني مطالعه له اسلام څخه د مخ اړولو او ټنبلۍ په دې دور كي د اسلام سره د رشتياني پيوستون او فكري او عملي اصلاح ذريعه جوتېدلای سي.

**مستقبل خپرندویه ټولنه**

ددې کتاب د ژباړې کار د ۱۳۸۷ ل. کال د اسد د میاشتې پر ۱۵ مه پیل او د دغه کال د سنبلې پر ۵ مه تر تصحیح وروسته پرینټ سو.






MUHAMMAD ASAD

# ISLAM AT THE CROSSROADS

I have no doubt that coming as it does from a highly cultured European convert to Islam, it will prove an eye-opener to our younger generation
*Muhammad Iqbal*

